# د پښتو ادبیاتو تاریخ

لومړی ټوک

لومړۍ دوره تر اسلام دمخه

لیکوال

پوهاند عبدالحی حبیبي

## بسم اللّه الرحمن الرحيم

## پيل

د لوي څښتن په مرسته د پښتو ژبی د ادبياتو تاريخ لومړۍ پلا زه ليکم. پوهان پوهيږي چه دغه کار دمخه چا
ندي کړي، او نه پخوانو موږ ته څه ابتدائي مواد د دې چاري لپاره را پريښي دي، نو ځکه به دغه زما ليکنه هم بشپړ
نه وي او ښائي چه ډيري ماتي گوډی ولري، خو سره د دې هم ښائي چه پوهان ما وبخښي، او دغه لومړۍ سعی که
څه هم ناقصه ده په ښه سترگه ووينې!

زه په دې کتاب کي د پښتو د ادب دورې پر څلور ډوله ويشم او د هری دورې لپاره يو ټوک ليکم نو به دغه د
پښتو د ادب تاريخ هم څلور ټوکه وي په دې ډول:

### ۱. لومړۍ دوره او لومړی ټوک

په دې دوره کي به دا وښوول شي، چه تر اسلام دمخه پښتو ژبه وه که يه؟ د ژبي موقعيت په پخوانو آريانانو کي
څه ؤ؟ او پښتو د زړو آريائي ژبو سره څه نسبت لري؟ دا لومړی ټوک تر اسلام دمخه زمانه را ښئي، او هر څه
معلومات چه د پښتو ژبي په خصوص کي په لاس راغلي دي پکښي ليکل کيږي!

### ۲. دوهمه دوره يا دوهمی ټوک

## ۳. دریمه دوره، او دریم ټوک

دا دوره له ۱۰۰۰هـ څخه شروع کیږي تر ۱۳۰۰هـ پوري را رسیږي، نو زموږ کتاب دریم ټوک د پښتو ژبي د ۳۰۰ کالو یعني درو پیړیو تاریخ دي، په دې دوره کي د پښتو ادب ښه وده کړیده. او په نظم او نثر کي ډیر تحولات پیښ شوي، او نوي نوي مکتوبونه او مسلکونه پکښې موندل شویدي، نو ځکه دا ټوک ډیر مهم دي او د ژبي د خورا پخو پخو خبرو بیان کوي، او د ادب مهم اړخونه ئي راښیي.

## ٤. څلورمه دوره یا څلورم ټوک

له ۱۳۰۰هـ څخه شروع کیږي او د ژبي دور ورستنیو ٦۰ کالو پر مخ تګ او لوړتیا را ښیي. د نوي ادب او نوو تحولاتو څرګندونه کوي، د ژبي د عصري نهضت تاریخ بیانوي، هغه نوی حرکت چه د پښتو ادب په دې نوي دوره کي مخ پروده کړي دي، سره له ادبي خصایصو او مزایاو څرګنده وي. د څلورم ټوک لومړۍ برخه خو دغه ده، دوهمه برخه ئي پښتو ادب ته د مضمون او محتویاتو لامله یوه عمومي ګڼه ده، یعني د پښتو شعر اقسام، عمومي مزایا ټول دلته د مثالو سره راوړل کیږي په دې ډول به د لوي خداي په مرسته د پښتو د ادبیاتو تاریخ په څلور ټوکه کي وکاږم او هغه مواد او ابتدائي معلومات به سره را غونډ کړم چه تر اوسه مي لاس ته راغلي دي. زه دا منم، چه زما کار او سعی به خورا ابتدائی وي مګر هیله لرم چه وروستنی پښتانه به دا چاره ښه بشپړه کړي. او دا بڼ به د پلټني او تحقیق په ګلونو ښه ښکلي او سمسور کړي، خو:

باغ د ګلو به سمسور وي موږ به نه یو

د بلبلو به پرې شور وي موږ به نه یو

# نوتوځي

## ادب

ادب څه شی دي؟ - د ادب موضوع - د ادب تاريخ: (موضوع ـ اصول ـ غايه)

## ادب څه شيی دي؟

د کتاب موضوع دا ده چه د پښتو ژبي د ادب تاريخ وليکو، نو تر هر څه دمخه بايد يواري ادب وپيژنو؛ چه څه شي دي؟

ادب په عربي ژبه ښيګړي او کياست او د ژبي او زړه ظرافت او ذکاوت ته وايي[1] چه ظرافت او حسن تناول ئي لنډ لغوي تعريف دي[2] اما په اصطلاح کي ادب په دې ډول تعريف کيږي: ادب هغه پوهنه يا ښه رياضت دي چه سړی د هغه په وسيله يو فضيلت او يو ښيګړه له ښيګړو څخه مومي[3] يا له تيرو تلو او خطاو څخه ژغورل کيږي[4] خلاصه: ادب د لغت او اصطلاح لامله ښيګړي ده، چه سړی له خطاء او بد څخه ساتي[5] او په خوي او خلق اړه لري، چه بيان ئي د اخلاقو د علم کار دي، او دلته په دې بحث اړه نلري.

# د ادب علم

ادب پر دوه ډوله دي: يو ته طبيعي او نفسي ادب وايو، چه لوړ ئي تعريف راغي، او د انسان اخلاقي ښيګړي
لکه ښندنه، زغمنه (حلم) او نوري اړه پوري لري.

دوهم ډول ته کسبي او درسي ادب وايو، چه په لوستنه او زده کړه او پلټنه موندل کيږي[1] او دغه دوهم ډول ادب
ته نو د ادب علم هم وائي.

نو په دې لنډ ډول د ادب د علم تعريف داسي کوؤ، چه دغه يو صناعي او کسبي پوهنه ده، چه د بليغي او ښې
وينا ډولونه په هر حال کي راښئي[2] او تل د دغه علم څخه دا زده کوو چه د خپل زړه مطالب په الفاظو او قلم څه
ډول ښکاره کو، او بل څرنګه پخپلو خبرو وپوهوو![3] په دې کتاب کي هم تل له دغه دوهم ډول ادب څخه خبري
کيږي او (ادبيات) هم هغو علومو او پوهنو ته وائي ، چه په دغه دوهم ډول ادب اړه لري. په نوي دنيا کي ادب يعنی
literature نسبتاً ارت مفهوم لري او د ځينو پوهانو تعريفونه د ادب دغه عصري اړخونه ښه څرګندوی مثلاً "ادب د
انسان د ژوندانه تفسير دي" (مياتهيو آرنلډ). د دغي خبري شرح بل پوه سړی په دې ډول کوي "هغه ابدي او سر
مدي قوه او شيوه چه قدرت انسان ته ورکړي دي، د دغو اظهار او ښکاره کولو ته ادب وايي" (مياکن).

د آيرليند مشهور شاعر اټيس ليکي: "په ادب کي ژبه تشه د ژبي په ډول په کار نده، بلکه د يو لطيف فن په رنګ
بايد استعمال شي، نو هغه لطيف فن چه د ژبي په ذريعه ښکاره کيږي لټريچر بولي".[4]

خلاصه د انسان د احساساتو او افکارو او جذباتو ترجماني د ادب وظيفه ده، مګر دا ترجماني به تل په داسي

هم دغه ادب دي په پښتو ژبه د ادب کلمه په دغه عامه معنی په (ژبوري) سره ښولاي شو، او ټول هغه علوم چه په
ژبه او ښه بیان اړه لري پکښې داخلولاي شو.

# د ادب موضوع

## د پخوانو شرقیانو آراء

پخوانو پوهانو د ادب موضوع داسي ټاکلې ده، چه ادب فقط په وينا (نظم او نثر) کي وضاحت او بلاغت له
خوا بحث کوي، اوګټه ئي هم دغه ده چه سړي په نظم او نثر وينا کي مهارت ومومي، او عقل ئي مهذب شی، زړه
ئي پاک سي، له ناپوهۍ څخه وژغورل شي، اخلاقي کمال مینده کړي د ښه خوي او د ښه عمل او لوړ همت خاوند
شي.[1]

پخوانو پوهانو چه د ادب موضوع منظومه یا منثوره وینا ګڼله، دوي ټول هغه علوم چه په دغو دوو ډولو اړه لري
(علوم ادبیه) بلل نو په یوه لنډه خبره کي دا ویلاي شو، چه د ادب موضوع وینا ده، او وینا هم تل له الفاظو او
کلماتو څخه جوړیږي، نو ادبي علوم هم د لفظ اوکلمې په شا او خوا کي سره ګرزي او د الفاظو احوال او ډولونه را
ښیئ، د شرق پوهان دغه علوم چه د لفظ رازونه او ښنګوالي بیانوي، ډول ډول ویشي. عبدالرحمن ابن الانباري
(۵۱۳-۵۷۷هـ) وايي چه اته علمه لکه نحو، لغت، تصرف، عروض، قافیه، صنعت الشعر، اخبار، انساب په ادب کي
داخل دي، یو سړی چه له دغو علمو څخه په یوه یا ټولو پوهیږي ادیب بلل کیږي.[2]

شي ښيګړي ښکاره کړي. علامه علي بن محمد چه په سید شریف جرجاني مشهور او په (۸۳۵هـ) مړ دي، علوم
ادبیه په دې ډول ويشي، لمړي پلا د ادب علوم پر دوه ډوله دي اصول او فروغ، اصول اته علمونه دي، په دې ډول:
(۱) که مفرد لفظ د اصل او ډول او مادې له پلوه وښئي علم لغت ئي بولي (۲) که د مفرد لفظ صورتونه او شکلونه
را وښئي علم صرف ئي بولو (۳) که د اصالت او فرعیت له خوا د الفاظو یو له بله نسبت بیان کړي نو ئي (علم
اشتقاق) بولو که داسي وي چه د الفاظو د ترکیب او سره نښلولو څیړنه وکړي، نو دا ډولونه لري (٤) که ئي د ترکیب
اشکال او د اصلي معناو د اداء بحث کاوه (علم نحو) ده (٥) که بېله لغوي معناو د افادې ډولونه پکښې بیان شي
(علم معاني) ئي بولي (٦) که د معنا د کیفیت او څنګوالي بحث د ښکاره توب او پټوالي له لامله وکري (علم بیان)
ئي بولي که د هغو مرکبو الفاظو بیان وکړي، چه ځانله بیل وزن لري، نو دا هم لاندي ډولونه لري (۷) که فقط د
الشعارو وزن ښکاره کړي (علم عروض) ئي بولي (۸) او که د بیتو آخر او د پای د کلماتو بحث وکړي نو ئي (علم
قافیه) بولو.

په دې ډول علامه سید شریف اصولي ادبي علوم اته کنې، او (علم بدیع) هم د معانی او بیان له قسمه بولي اما
فرعي ادبي علوم څلور دي:

(۱) که د لیک او کتابت د نقوشو بحث وي (علم خط) دي (۲) که خاص د منظوم کلام څیرنه وي (قرض
الشعر) دي (۳) که خاص د نثر وینا بحث وي (علم انشاء) ئي بولي (٤) که په دغو ټولو اړه نه لري (علم
محاضرات) ئي بولي، چه تاریخ او انساب هم په دغه څلورم قسم پوري اړه لري، او دا علم سړی ته ښه وینا او
بدیهه ویل ورښیي چه د کلام معاني او تراکیب دواړه ښه او سم وي.[1]

او علم دواوين (د مدونو اشعارو پوهنه) او علم امثال (يعني د متلو پوهنه) هم ادبي علوم دي[۱] يو بل علم چه
احاجي و اغلوطات بلل کيږي، او د الفاظو له هغو استعمالولو څخه بحث کوي د اصولي او قياسي قاعدو څخه
مخالف وي لکه علم لغز او معماء دا هم په ادبي علوموکي داخل دي.[۲]

## نوې آراء

تر دي ځايه مو د پخوانيو ځينو شرقي پوهانو آراء د ادب په خصوص کي لنډ لنډ وليکل، مگر په اوسني عصر
کي لکه نور ټول بشري علوم چه پر مخ تللي دي ادب هم تطور موندلی او په نوي رنگ رنگيدلي دي نو به بده نه
وي چه د نوي عصر پوهانو افکار هم د ادب په شا و خوا کي وارو، لمړۍ پلا بايد دا ووايو، چه نسبت پخوا ته
اوس ادب ډير ارت شوي او خورا ښه او مفيد شی ځني جوړ شوی دي، نوي اصول ئې موندلي، او په نوي راز
راوتلي دي، نو به په لاندي ليکوکي ادب د اروپا او نوي نړۍ په سترگه ووينو.

په غربی دنيا کي له پخوا زمانې څخه خلقو پر ادب باندي ځيړنی کړيدي، د يونان معروف فيلسوف ارسطو په
خپل کتاب "شعريات" کي هسي ليکي: چه ټول لطيف فنون د فطرت پيښې (محاکات) دي، د انسان چه هر شي
خوښ شي نو ئې پيښې کوي، دغه پيښې دا نسان د لوړتيا اساس دي او خپلي خوښۍ او تاثرات تل انسان د لطيفو
فنونو په ذريعه نقل کوي، چه ادبيات هم له دغو څخه يو فن دي.

نيومن د ارسطو د قول شرح داسي کوي: چه "ادب خارجي صداقت نه بيانوي، بلکه داخلي رښتيا والي ښئي،
شيان نه ښيئي بلکه خيالات تصورکوي."

گوسائين فرانسوی نقاد وائی: چه زموږ دما غ تل د فطرت ښکلاوي، او طبيعي جمال او ښه مناظر ويني، نو د

نیومن وائي: موږ تل په خبرو سره خپل افکار څرګندوو، دغه افکار او خیالات که ولیکو نو ادبیات ځني جوړیږي.[۱]

د برطانیا دائرة المعارف لیکي چه literature یوه عمومي اصطلاح ده، د هغو تعابیرو لپاره چه افکار د لیک ډګر ته راولي، او د ادب ډولونه د نژادي خصایصو، یا فردي افکارو او طبایعو سره برابر وي، یا د ځینو اجتماعي او سیاسي ټولنو له احواله سره سم وي او د دوي د افکارو تبلیغ کوي، اجتماعي او سیاسي اصول ئي څرګندوي.[۲]

د امریکا یو اوسني پوهاند لیکي: چه د لتریچر کلمه له لاتیني litteratura څخه ده، چه ماده ئي هم littera یا

letter یعني نوشته او لیک ده، او عام تعریف ئي دا دي: هغه عبارات چه د افکارو او معانیو نمایندګي د الفبا د تورو په ډول کوي اما محدود او مروج تعریف ئې دا دي: چه ادب هغه سم او مهذب شوي او صنعتي بیانونه دي چه د تنقیدي علومو تر سیوري لاندي وي، او د افکارو د څرګندوني او ښکاره کړني او د ښکلا او ښایست لامله هم قیمت ولري، جان مورلي Morly په لنډ ډول وائي: ټول هغه کتب ادبیات دي، چه په هغو کي اخلاقي حقایق او عمومي اوضاع په ښه ډول ښکاره کیږي او ټول شیان د عمومي حقیقت سره ښښلوي.[۳] په نوي دنیا کي د ادب څانګي او ښاخلې دوني ډیري شوي دي، چه اکثر علوم په ادب کي داخل دي، حتي یو غربي مفکر وایي: چه ادب فقط دو ښاخه لري، که له عقله سره اړه ولري سائنس ئې بولو، اوکه د خیالو سره اړه ولري، نو شعر بلل کیږي په دې ډول نو مثبت علوم او سائنس هم د ادب له دائرې څخه نشي وتلاي نو دلته لازمه ده چه د ادب عصري موضوع ښه ښکاره کړو، که د دنیا مختلفو ادبیاتو ته وګورو، مقاصد او عناوین ئي تر نظر لاندي ونیسو نو ښائي چه لاندي موضوعات ټول په ادب کي داخل وي:

ب ـ کورني او شخصي لیکني او شخصي لیکونه چه د خپروني لپاره ولیکل شي لکه وصیت هجو

ج ـ رسمي لیکني چه نه خپرېږي: لکه پاسسپورټ، قباله، او دغسي نور

د ـ رسمي لیکني چه خپرېږي لکه قوانین، اصول نامې، او نور دغسي

هـ - نور عام ډول لیکونه چه د خپروني لپاره کښل کیږي، لکه سیاسي او داخلي خبرونه، جغرافي او تاریخي احوال د جرگو او حکومت رویدادونه



(۳) د حقایقو د ښووني لیکني لکه:

الف ـ د ښوونځیو او مدرسو د لوست کتابونه

ب ـ تحقیقي کتابونه، چه د لوړو او پوهو خلقو لپاره وي لکه تواریخ، سفرنامې، قصې او نور

ج ـ د خاصو خاصو فونونو پلټني د مخصوصو پوهانو له خوا

(٤) د خوښۍ او خندا او ټوکو لیکني لکه کیسي، معماوي ټوکي او نور دغسي

(ب) هغه لیکونه چه د تخیلاتو ښکارونه ئي مقصد وي او دا لاندي څلور څانگي لري

(۱) هغه لیکني چه د شخصي ژوندانه داخلي او د نني محسوسات ښکاره کوي، لکه عشقي بدلي او سندري او خطونه

(۲) تنقیدي او د کره کړني لاندینۍ څانگي لري:

الف ـ د اخلاقو د ښه والي لپاره (اخلاقي ليکني)

ب ـ د دين او مذهب د تبليغ لپاره (تبليغی ليکني)[1]

په دي ډول د ادب موضوع د حقيقت او تخيل په ځانګوکي ويشله کيږي، او لمن ئې هم خورا ارته ده، او رښتيا هم دا ده، چه د دې عصر ادب دغه ټول وظايف په ښه ډول اجرا کوي. د دې لپاره چه د ادب ارته لمن او د موضوع احتوا په ښه ډول تاسي ته ښکاره شي، نو د يوه بل الماني پوهاند راى هم د ادب د موضوع پر ويشنه دلته را نقل کوم:

(۱) د مطلب او معنا په لحاظ، چه لاندي ځانګي لري

الف ـ هغه ليکونه چه د لطيف فن په ډول کښل شوي وي

ب ـ هغه ليکونه چه د لطيف فن په ډول نه وي کښل شوي

(۲) د ژبي او بيان د ډول په لحاظ لاندي ځانګي لري:

الف ـ منطقي او استدلالي ليکني

ب ـ جمالياتي او د ښکلا ليکني

(۳) د موزونيت او موسيقيت يعني وزم لرني او غږوني په لحاظ لاندي ځانګي لري

الف ـ آزاد او بې وزمه ليک (نثر)

او ټول علوم او انساني مزایا چه په وینا او پوهیدنه پوري اړه لري، له منځه وزي او د انسان انسانیت هم ورسره
محو کیږي، په دې ډول نو ادب د انساني ارتقاء او ذهني لوړتیا اساس دي، او نن چه انسان هر څه لوړتیاوي
میندلي دي، د ادبیاتو په برکت سره دي، اوکه ادبیات نه وای نو به انسان هم اعجم حیوان وای.

# د ادب تاریخ

(موضوع - اصول - غایه)

## موضوع

تاسي دمخه ولوستل چه د ادب لمن څوني ارته ده او د انساني معلوماتو او پوهنو څوني لوئي برخي په ادب کي
دننه ګڼلي کیږي.

د انسانانو ژوند تل دودي او لویښت تر قانون لاندي دي، هر وخت اوښتني، انقلابونه، تغیرات پیښیږي او دا
اوښتي تل د انسان د ژوندانه ډولونه هم اړوي، له یوه رازه ئي بل رازکوي. خو هرکله ټوله موجودات دکمال خوا
ته ځي، او د بشپړتابه پر لوري درومي د دې قدرتي او فطري بشپړتیا او تکامل سره د انسان د ژوندانه ټول ارکان او
اجزأ تغیر مومي، اوړي له یوه حاله پر بل حال کیږي چه ژبه او ادب هم تر دغه قانون لاندي دي. د تاریخ پاڼي دا
خبره به ښه ډول را ښيئ، چه یو وخت د انسانانو یوې ډلې یوه ژبه وبله دا ژبه د افهام او تفهیم آله وه لومړی به ډېره

ملت د فکری ارتقأ و علمي لوړتياؤ احوال او اوضاع مفصل ليکي، د ټولو پوهانو د ژوندانه پيښي، او د دوي
کتابونه او علمي کار نامې او آثار ښئيي.

نو داسي هم ويلاي سو چه د ادبياتو تاريخ په حقيقت کي د ملت د عقليت او د ژوندانه د ډېرو مهمو څانگو
تاريخ دي. د ملتو د لوړتيا او ځوړتيا، دودي او پرمختگ ټول احوال بيانوي که د يوه ملت تاريخ د ادب له ښيگړو
او پلوشو څخه تش وي، نو هغه تاريخ به خامخا په وينو لړلي وي، او بېله جگړو او شخړو به د بل څه بيان نه کوي،
نو د عمومي تاريخ يوه مهمه څانگه دغه د ادب تاريخ دي چه سياسي او اجتماعي تاريخ هم له ادبي تاريخه څخه
مرسته کوي او د يوه ملت تاريخ چه له ادبی څانگي څخه ځان نسي مستغني کولاي، سبب ئې هم دا دي چه تاريخ
تل د ملتو د لوړتيا او ځوړتيا څرگندونه کوي، او د دغو علت او اصلي سبب هم د ملتو علوم، آداب، او اخلاق دي.
نو د تاريخ مهم کار او غوره وظيفه هم دغه ده، چه د يوه ملت عقلانی لوړتياوي، او علمي او ادبي پيشرفتونه ښکاره
کړي، او دا ټول د ادبياتو د تاريخ کار دي.

**اصول**

د ادب د تاريخ د ليکني اصول ډول ډول دي، هر څوک ئې پر خپل ذوق سم ليکي، خو دلته به ئې ځيني
اساسي ډولونه چه د تاريخ ادبيات عناصر بلل کيږي لاندي وښول سي.

١- ژبي ته د پيدايښت له ابتدا څخه بيا تر اوسه گوري، او ټول هغه تغيرات چه ور پيښ شوي دي بيانوي ئې،
مثلاً د حروفو، نومونو، افعالو او مشقاتو پيدايښت. د تعبير اساليب د کلماتو د جوړيدلو لاري، د اصواتو او ږغونو
شرح، د ژبي عنصري ښيگړي پلټل، د ژبي ريښې معلومول او له نورو ژبو سره ئې پر تله کول، چه دي بحث ته

۵- د ادب تاريخ ټول افواهي اشعار (نا ليکلي آثار) او متلونه، او ملي سندري، پلټني او له دغو څخه د يوه ملت
ادبي ذوق او استعداد معلوموي.

٦- د ادب تاريخ ټول مدون او ليکلي شوي آثار او کتب (لږ وي که ډير) را ټولوي او له هغه څخه د ملت د ژبي
او فکر او عقلاني تجلياتو په خصوص کي معلومات اخلي.

٧- د ادب تاريخ هغه اوښتني او لوړتياوي چه د علم او ادب لامله يوه ملت ته ور پيښيږي ښيي او د ادب اهميت
او غوره والي د بشر په تاريخ کي ښکاره کوي.

٨- د ادب تاريخ راښيي، چه د يوې ژبي وينا او کلام (نظم، نثر) څنګه پيدا شو؟ څنګه ئې لوړتيا و موندله،
کومي دورې ئې تيري کړې؟ چا خدمت ورته کړئ دي؟ کوم کوم معاني او مقاصد او مضامين پکي سته؟
خاصيتونه او مزايا ئې څه دي؟ دا ژبه کومي ښيګړي لري؟ چه ها نوري ژبي ئې نلري.

**غايه**

ځکه چه د ادبياتو تاريخ د هر ملت د علمي او عقلاني لورتيا تاريخ دي نو که سړي د يوې ټولني د ادب تاريخ
ولولي ټول د تاريخ مهم حوادث او وقايع ئې ورته څرګنديږي؛ اجتماعي او سياسي رشد ئې ور معلوميږي تاريخي
مفاخر ئې ورته ښکاره کيږي.

موږ چه د پښتو ژبي د ادب تاريخ لولو خپل مفاخر راته څرګندوي د ښلو ملي ښيګړو سره مو اړيکي ټينګوي او
په آينده کي د علمي او ملي ارتقاء دپاره د يوه نافع او پر ملي اساس ټينګ ادب د روزني لاري را ښئي.

# لومړي برخه

## آریا او آرین

د ژبو ویشنه - هندو اروپائي ژبي- آریائي اقوام -

باختري آرین - آرایائي ژبه او پښتو - د آریا کلمه -

آریانا ویجه - آریا ورشه - نتیجه

# د ژبو ویشنه

## ژبه

ژبه هغه ږغونه دي، چه د دغو په وسیله هر اولس د خپلو مقاصدو تعبیرکوي، یا هغه اصطلاحي ویناوي دي، چه
د یوه قوم پر ژبه جاري وي، په عربي ئې لسان یا لغت بولي، او له یوناني لوغوس څخه به جوړ شوي وي، چه معني
ئې کلمه ده[1] او په اروپائي اصطلاح ئې لانګوج language بولي.

د دي ږغونو انواع د ملتو په اندازه مختلف او هم ډېر دي، نو ځکه پر نړۍ ډېري او ډول ډول ژبي پیدا شویدي،
او هر اولس ته خپل ږغونه آسان او نور پردي ږغونه ورته ګران دي.

## لوړي ژبي او کښتي ژبي

هغه ږغونه چه انسان ئې تر خوله را باسي ډول ډول دي، او بیا هم د ږغو مرکبات متفاوت دي، نو چه د ملتو د
خولو ږغونه او بیا ئې هم مرکبات ډېر دي، ځکه ژبي هم پر دنیا ډېري دي، د ژبو پوهانو د نړۍ ژبي په ډول ډول
ویشلي دي، یوه مشهوره ویشنه ئې دغه لاندي ده، چه پروفسور اډیلنګ ته ئې نسبت کیږي، دی وایي، چه ژبي د
سموالي او تهذیت په درجه دوه ډوله دي:

### ۱- ګښته ژبي

چه لغات ئې د بیان لامله کښته، او الفاظ ئې خورا لنډ او یوه یوه هجا دي د اسم او فعل او حرف فرق ئې نه

## الف: اوښتونکي (متصرفه) ژبې

چه د تصرت او اړولو او اشتقاق قابليت لري په کلماتو پوري ئې دمخه هم ملحقات نښلي او رووسته هم، يعني
ځيني نخښې لري، چه د کلمې دمخه راځي، او په عربي ئې "سابقه" او په اروپائي اصطلاح prefix او په پښتو
ئې (مخني) بولي.

دغسې ځيني نوري نخښې هم په دغو ژبو کې شته، چه تر کلمو وروسته راځي، چه په پښتو ئې "وروستني" په
اروپائي اصطلاح suffix او به عربي ئې "لاحقه" بولي، او دغه مخني او وروستني ځانله بېلي معناوي هم لري،
اوښتونکي ژبې دوې مشهوري څانگې لري:

لومړۍ څانگه: آريائي ژبې دي، چه زموږ د وطن آريائي نسل خبري په کوي، هر ځاي چه زموږ له خاورو څخه
آريائيان تللي دي، د دوي ژبو ته آريائي وايو، او اروپايان دې ژبو ته (هندو اروپائي) Indo-European هم
وايي، دا ژبې شمالي او جنوبي څانکي لري، شمالي ئې : د اروپا آريائي ژبې دي لکه لاتيني Latin، يوناني
Greek، سلتي Celtic، اسلاوي Slavic، توتونيک Teutonic. جنوبي ئي د ايشيا آريائي ژبې دي، لکه
سنسکريټ، ژند، پښتو، پاړسو.

دوهمه څانگه: سامي Semantic ژبې دي، چه پخوانيو متمدنو قومو لکه بابل، آشور، فنيقه ويلې. سامي ژبې
دا ډلولنه لري:

آرامي: د بابل زړه ژبه ده. چه سرياني او کلداني ئې څانگې دي.

عبراني: چه تورات په دې ژبه دی، او اسرائيليانو آرامي او کلداني سره گډه کړه

دا ژبي کلک او جامد اصول لري، چه په بناء کي کوړتې تغير نه راځي، او د ځينو ادواتو په نښلولو سره اشتقاق ځيني کيږي، چه دغه ادوات ځانله معنا هم نلري، او اصول ئې بې اوښتلو پاتيږي. تورانۍ ژبي چه يوه ئې تورکي ده، او هم مغولي ژبي چه تنقاسي، اوغراني، اوزبکي ئې څانگي دي، تړول نا اوښتونکي ژبي گڼلي کيږي.[1]

# هندو اروپائي ژبي

# يا آريائي ژبي

د ژبو د ويشني يو لنډ ډول مو دمخه ولوست، پوهانو دا ويشنه په ډول ډول کړيده بيله هغي لوړي ويشني يوه بله دا ده، چه د پنځو لويو وچو ژبي جلا جلا ويشي[2] اما ښه او معتبر تقسيم دا دي، چه ژبي د ريښې او اصولو او قواعدو د شباهت لامله وويشلي سي نو ځکه دلته ما دغه ويشنه غوره کړه.

تاسي ولوستل چه په لوړو او اوښتونکو ژبو کي يوه مشهوره ډله هندو اروپائي يا آريائي ژبي دي، چه د دنيا يو مشهور پښت يعني آريائي اقوام ئې وائي. دا ژبي د سموالي او ارتوالي لامله خورا ښې ژبي دي، او د بشر مدني اقوام هم په دغو سره ږغيږي ځکه چه زموږ ژبه پښتو هم له دغو ژبو څخه شمېرل کيږي نو لږ څه ډير د آريائي ژبو څيړنه دلته ښائي: آريائي ژبي د ږغونو او اصولو له لامله دوې ډلي دي، چه هره ډله په خصوصياتو او الفاظو او

## د ویشنې لار

دا ویشنه پر دغه علمي اساس بناه ده.

پوهاند فقط یوه کلمه (سل، صد، ۱۰۰) ئې معیار کړې ده او حروف ئې د ژبو د وېشنې شاخصه گڼي،په لاتیني سل ته سنتم وائي، او به سنسکریت کي (سیتم) بولي، نو ټوله هغه آرایائي ژبي چه د دې کلمې په سر کي (س) بې (ن) وي د (ستم) ډله ئې بولي، او که لکه لاتیني د سل د کلمې په سر کي (س) یا (هـ) وي، او وروسته نون هم ولري، دغه ډله د (سنتم ډله) بلله کیږي، عموماً آریائي غربي ژبي د سیتم له ډلي او شرقي آریائي ژبي د سنتم له ډلي دي.[1]

د مثال په ډول: په سنسکریت کي سل ته (سیتم) وائي په پاړسو کي (صد، سد) بولي، په روسي ئې (استو) بولي چه (ن) نلري، نو ځکه دغه ژبي د سیتم له ډلي څخه گڼو. بالعکس سل ته په لاتیني سنتم یا کنتم وایي، په انگلیسي او فرانسوي او ایتالوي کي هم (ن) لري نو ځکه ئې د سنتم په ډله کي بولو.

لاندي ئې دغه مثالونه لږ څه واضح وگورئ:

| د سیتم ډله | | د سنتم ډله | |
|---|---|---|---|
| سنسکریت | ستم | لاتیني | سنیتم |
| پاړسو | سد(صد) | یوناني | هیکاتون |
| هندي | سو | انگلیسي | هنډریډ |


آریائي (هند و اروپائي) ژبې
سنتم
ستم
پهلوي
فارسي
د فرس زړه ژبه
پښتو
اوستا
سنسکریت
اسلاوي
الباني
ارمني
روسي
زوړ پروس
لیتواني
لاتیني
یوناني
توتني
سلتي (کلتي)
سکانهنیاوي

په ديې انځورکي تاسي ته د نړي مشهورو آريائي ژبو وېش ښکاره شو، او ومو ليدل چه د سيتم له څانگي شخه
يوه ژبه هم پښتو ده، او دا ژبه د سينسکريت او اوستا (زند) سره ډېره نژدې خپلوي لري او درې سره د يوې مور
لونې دي.

## د آريائي ژبو يوه بله سره نژديوالي

د ژبو پوهان تل د ويشني او ډلي ډلي کولو پر وخت، د ټولو ژبو اساسو ته گوري د قواعدو مشابهت، او د لغاتو د
ريښو سره نژديوالي ئې په غورويني. که په دغو اساسوکي ژبي سره نژدې او سره ورته وي، نو دوي هغه ژبي په يوه
ډله کي شميري، او وائي چه له يوې کورنۍ څخه دي.

وگوري دغه ژبي چه مو په دمخني انځورکي آريائي ژبي وگڼلې، او دوي مو د هندو اروپائي ژبو په غټه کورنۍ
کي داخلي کړې ټولي په اساسو او قواعدو او لغاتوکي ډېري سره نژدې دي که دغه لاندي جدول په غور وگوري، دا
به درته ښکاره شي چه په رښتيا دا ژبي له يوې کورنۍ څخه دي.

| پښتو | پاړسو | سنسکريت | اوستا | لاتين | انگليسي | جرمني | فرانسوي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پلار | پدر | پاتري | پيتر | پتر | فادر | واتر | پير |
| مور | مادر | ماتري | ماتر | ماته را | مدر | موتر | مير |
| | | | هوگه | | | | |

# آریائي اقوام

## د دوي پښت او خپرېدنه

دمخه مو وویل چه پښتو ژبه د هندو اروپائي یا آریائي ژبو څخه د سنسکریت او اوستا خور ده اکثر غربي پوهان
چه د پښتو پلټنه ئې کړیده دا خبره مني، دوي وائي چه پښتو له سامي او نورو ژبو سره اړه نلري، له هندو اروپائي ژبو
څخه ده.[1]

هندو اروپائي ژبي چه انډو ژرمانیک ئې هم بللي، د آریا د پښت ژبي دي، آریائیان د انسانانو یوه خورا مهمه
ډله ده، چه له پیړیو پیړیو څخه دوي پر مځکه د لوړ مدنیت خاوندان دي او د شرق او غرب غټ غټ ملتونه له دي
پښته څخه را وتلي او پیدا شوي دي.

آریائیان تر خپریدلو او ډیریدلو دمخه په یوه ځاي کي اوسیدل، چه دوي پخپله پخوانۍ ژبه، آریانا ویجه Aryana
Vaego باله یعني د آریا مځکه یا د اصیلانو او نجیبانو او پاکزادانو هیواد.[2] وایي چه د دوي د هیواد هوا خورا ښه
وه، مځکي ئې ډیري اباتي وې، دوې میاشتي ئې پسرلي ؤ، نوري میاشتي به یخني وه.

مورخین په دې خبره کي ډیره سره مختلف دي، چه آیا دغه آریانا ویجه چیري وو؟ ځني وائي، د بالټیک غاړي،
او ځیني وایي چه د تور سین شمالي غاړي دي، بله ډله هسي ګڼي، چه د خزر د ډند شرقي او شمالي غاړي د
آریائیانو اصلي مرکز وي.

خو ځیني پوهان دی ته هم تللي دي چه د آریائیان د توکم اصلي ځاي د پامیر لوړي مځکي او د آمو سر چیني

گایلس P. Giles د کیمبرج د پوهنتون د مقایسوي فیلالوژي پروفیسور د دغو آریائي اقوامو لامله هسي معلومات را
کوي:

هند و آریائي نوم پر آریائي اقوامو او ژبو تر ټولو دمخه دوکتور تهوماس ینگ Thomas Young ایښي دي[1] اما
د هندو ژرمن Indogermanic اصطلاح تر ټولو دمخه په ۱۸۲۳ ع یوه جرمني ژب پوهان کلیپروت Kalproth باب
کړه، دې علماو د ژبو ړغونه، قواعد، عمومي ریښې او ستې ، او ټول خصایص ولیدل، او یوه ډله ژبي ئې په دغو
نومو له یوې کورنۍ څخه وګڼلې، اما تر ټولو دمخه سر ولیم جونز Sir William Jones د هند د ایشیائي ټولني مشر
په ۱۷۸٦ ع دغه ژبي یوه کورنۍ ګڼلي وې، خو دغه نومونه وروسته پر کښیښودل شوه.

دا خلق چه هندو اروپائي ژبي ئې ویلې د انسانانو د سپین توکم څخه وه، دوي ځیني حیوانات او بوټي پیژندل،
ښائي چه ځیني لاسي صنایع ئې هم درلودل د اوسنیو ژبو سره ورته والي ئې موږ ته دا را ښئي چه دغه خلق به یو
وخت یو ځاي سره اوسیدل، مګر چه د آمو غاړو او باختر ته را ورسیدل خورا دمخه وخت ئې (۲۵۰۰ق ،م) تخمین
کیږي. دې خلقو ځانونه آرین Aryan بلل،[2] له علمي پلټونو څخه دا خبره زباده شوې ده، چه دغو آریائي اقوامو تر
خپریدلو دمخه یوه ژبه او یو مذهب درلود. د آسیاي صغیر په کوي بوغاز Boghaz-Koi کي چه د پخوانو هیتانونو
پایتخت (پتریوم) هلته و یو وړ لیک (کتیبه) پیدا شوې ده چه نیټه ئې (۱٤۰۰ ق، م) ده دلته یو آریائي قوم اوسید، چه
میتاني Mitani نومیدل او دغه زړه کتیبه هم په دوي کي Tel-el Amarana ته منسوبه ده دغه زوړ لیک چه پوهانو
وکوت، دا ئې ومنله چه په شمال غربي بین النهرین یا آسیائي صغیر کي هم د (۱٤۰۰ ق،م) په شاو خوا کي آریائي
اقوام اوسیدل، په دې کتیبه کي د دوي د شهزادګانو نومونه راغلي دي چه سوچه آریائي نومونه دي لکه: آرتیتما
Artatama، تسرتا Tusratta، سترنا Suttarna دغسې هم په دغه کتیبه کي د هغو ارباب انواع نومونه اخیستي

دي، چه سوچه آریائي دي مثلاً شورياس Shurias او مرتياس Marytas چه د سنسکریت سوریا Surya (لمر) او
مروتاس Marutas (د باد رب النوع) سره پوره ورته دي، دغسي هم سماليا Simalia (د واورنو غرو ملکه) کټ
مټ په هماليا او زيما Zima (واوره) پخوانيو آریائي کلماتو پوري نښلي. دغسي هم وروسته په (۷۰۰ ق،م) موږ د
اسور بانيپال Assurbanipal آسوري لوي پاچا په کتب خانه کي د (اسرا ميزاس) Assara-Mazas نوم وينو، چه
کټ مټ دغه د اوسا اهورا مزدا Ahura Mazda (د لوي خداي نوم) دي، او دا نوم په سنسکریت کي اسورا
Asura او په اوستا کي اهورا Ahura و، په دې ډول موږ له دغو دلايلو څخه دا علمي نتيجه اخلو چه د (۱۵۰۰ ق،
م) په حدودو کي آریائي اقوام په ژبه او مدنيت او ديانت کي سره يو وه او تر دغه وروسته دوي ښائي چه سره بيل
شوي وي[1]

# باختري آرين

## هندي او ايرانۍ څانگي

دمخه مو وويل چه آرين اقوام له "اريانه ويجه" څخه خپاره شول، او زموږ وطن ته له شمالي خوا راغله تر آمو را
واوښتل، او په باختر کي يو ښکلي مدنيت جوړ کي، او دا مرکزي آریائيان پر درې برخي باندي ويشلاي سو:

۱- مرکزي او باختري: چه دوي د هندوکش په شمال او جنوبي لمنو کي هستوگه درلوده او زموږ د وطن په غرو
او دښتو او دروکي سره خپاره شول. د اباسين له څنډو د آمو او د خراسان تر دښتو پوري د دوي اصلي مرکزي

(ق،م) څخه شروع شوي ؤ تر اتمي قبل الميلادي پيړۍ پوري جاري ؤ. او لومړی دولت دغو آريائي اقوامو په ايران کښې د ماد Medie په نامه د اومي قبل الميلادي پيړۍ په ابتداء کي تشکيل کړي ؤ.[1]

۳- يوه دسته آريائي اقوام د باختر او هندوکش له شاو خوا څخه د کابل او خيبر او نورو لارو څخه ولاړل په سپتاسندو (يعني د اوو دريابو په مځکه) کي سره خپاره شول، دوي تر اباسين تير شول، د اباسين او گنگا په منځ کي يو ځلان مدنيت جوړ کړ، او د هند په زنگلو او بڼو کي ودان شول، د دغو هندي آريائيانو ليږدنه هم له څورلسمي قبل الميلادي پيړي څخه شروع کيږي.[2] د آريائي اقوامو دغه درې ډلي (باختري-ايراني-هندي) زموږ له دې کتابه سره اړه لري د دوي په ژبو کي پلټنه کوو، او د پښتو ژبي ادبي تاريخ ځني را باسو. د دوي د مدنيت، اجتماعي احوال، روحي اوضاعو په کتنه کي څه نه څه د پښتو تاريخ څرگندوو.

مرکزي آرين چه د بخدي يا باختر (بلخ) په شاوخوا کي اوسيدل، ښه او غوره مدنيت ئې درلود، دوي خپل هيواد (آريا ورته يا آريا ورشه) باله، لومړۍ پلا دا نوم د منو سمهيتا Manu Samhita په کتاب (۲۲ شعر ۲ فصل) راغلي دي، مانو يا منو د آريا پلار کڼل کيږي، او آريائيان (منوري) هم بلل کيږي، دا پلار په دوي کي ډير شهرت لري، او د ده په نامه ځيني قوانين هم شته چه (د منو ليار) ئې بولي. آريا ورته هم مانو نيکه په خپل کتاب کي ذکر کوي، او مورخين وائي، چه په دې هيواد کي آريائيان پښت تر پښته پيدا شوي دي.[3] د دې نامه معني داسي ده: د اصيلو او ښاغلو هيواد.[4] د دوي مرکز بالهيکا- بخدي- بلخ و، چه د لوړو بيرغو ښار بلل کيدي، او تل به دا لوي د مدنيت مرکز د (رڼه-روښان-ښکلي) په صفتو ستايل کيدئ مثلاً بلخ بامي- بلخ گزين (د منو او بامي کلماتو شرح وروسته په دې کتاب کي راځي).

# آریائي ژبه او پښتو

دمخه مو د آریائي ژبو ویشنه ولوسته او تاسي ته ښرگنده شوه چه کومي کومي ژبي د آریا له کورنۍ څخه دي. دا طبیعي او منلې خبره ده، چه آریائي اقوامو په خپل لمړنی ټاټوبي (آریانا ویجه) کي ځانله یوه ژبه درلوده، چه له هغې ژبي څخه وروسته هندي، ایراني، بخدي ژبي راوتلي دي. په دې لومړنۍ آریائي ژبي کي تر اوسه څه معلومات د پوهانو لاس ته ندي راغلي، او نه چا څه پکښې ویلي دي، تش دوني ویل کیږي، لکه دوي چه مذهب، رسوم، منلي دودونه درلودل نو ښائي چه بیله ژبه به ئې هم درلوده، خو دا نه معلومیږي چه اصلي آریائي ژبه کمه او څنگه او څه راز ژبه وه، او څو عمر ژوندۍ وه؟

دوکتور گوستاو لوبون وائي: چه تر خپریدلو او هجرت دمخه آریائي اقوامو یوه مخصوصه ژبه ویله چه نوم ئې (آریک) و دا ژبه اوس ورکه ده، خو سنسکریت ژبه له هغې ژبي څخه را وتلې ده[1] دا اصلي آریائي ژبه چه د ټولو آریائي ژبو مور یا انا بلل کیږي، لااقل تر میلاد (۳۰۰۰) کاله دمخه ویله کیده او د دوي مشترکه ژبه وه، خو اوس ئې هیڅ نښه او بولگه نده پاته، له دې جهته چه د آریائیانو تاریخ او لیکني د قبل المیلاد تر (۱٤۰۰) کاله دمخه نرسیږي نو دوني ویلاي شو، چه سنسکریت، اوستا، زړه پارسو درې سره له دغي اصلي آریائي ژبي څخه زیږیدلي دي.[2]

میډیم راگوزن Z.A.Ragozin لیکی: چه تقریباً سل کاله دمخه په اروپا کي د هند د علومو پلټنه او زده کول شروع شول، هغه وخت چه چارلس ولکنس Wilkins مهابهارت ترجمه کړ، او د سنسکریت گرامر ئي وکیښ، نو سر ولیم جونز، د منو دهرم شاستر، او کولبروک Colbrook د هند پر فلسفه او قوانینو او ادب باندي کتابونه ولیکل، نو د اروپا او هند د ژبو پر تله او مقایسه شروع شوه، او دا فکر خلقو ومانه، چه سنسکریت د ټولو ژبو مور ده، مگر

د اصلی آريائي ژبي عمر د ژبو پوهان (۲۵۰۰ تر ۳۰۰۰ قبل الميلاد) پوري تخمين کوي، دوي وايي: چه آريائي
اقوام تر اباسين (انډوس) پوري وتل. خپل مشهور ديني کتاب ويدا Veda ئې په خپله ژبه انشاء کړه، د دې کتاب د
ليکني تاريخ تر ۱٤۰۰ قبل الميلاد دمخه نه ځي ، لکه دمخه چه مو وويل چه د ايشياي کوچک د آريائي اقوامو زاړه
ليکونه هم د (۱٤۰۰ ق،م) په شاوخوا کي کښل شويدي، که د هندي آريائيانو کتاب ويدا له هغه ليکو سره پر تله سي،
ژبي ئې سره مخالفي دي، خو د نومو اشتراک ئې ښکاريږي.

په دې دليل نو ويلاي شو: چه (۱٤۰۰ ق،م) به شاوخوا کي د آريائي اقوامو ژبي سره بيلي شوي وې او اصلي
آريائي ژبه په دغه وخت کي نه وه ژوندۍ، دا خبره هم د ژبو پوهان مني، څو يوه ژبه په نورو فرعي ژبو اوړي، يعني
ځانله بيلي بيلي ځانګي مومي، لږ تر لږه يو زرکاله غواړي.[1]

نو په دې حساب چه موږ د ويدا، او د کواي بوغاز د زاړه ليک له عصره يعني د (۱٤۰۰ ق،م) څخه زرکاله پخوا
ولاړ سو نو به دا ووايو، چه د (۲٤۰۰ ق،م) په شا او خوا کي د آريائي اقوامو ژبه لا يوه وه، او لکه ځيني مورخين چه
وايئ، دا ژبه له پارس او ميډيا څخه تر پنجابه ويله کيده او د آمو شمالي خواوي سغديانه هم پکښي شاملي وې[2] نو
د دې اصلی آرايائي ژبي عمر له (۲٤۰۰ ق،م) څخه تر څلور زر قبل الميلاده پوري تخمين کيږي، يعني له هغه وخته
چه آريائي اقوامو لومړۍ پلا له (آريانا ويجه) څخه هجرت کاوه!

د دې اصلي آريائي ژبي کوم اثر او نخښه لکه دمخه چه مو هم وويل، اوس نده پاته، خو زه به په راتلونکو ليکو
کي د پښتو نژدي والي له دغي ژبي سره په ځينو علمي دلايلو ثابت کړم او دا خبره به زياده کړم چه پښتو هغه اصلي
ژبي ته خورا نژدې ده، او لکه سنسکريت او اوستا چه ځني زيږيدلي دي، پښتو هم د هغي ژبي لور ده.

پښتو ده وروسته چه تاسي د پښتو او پښتون د نومو په خصوص کي تاريخي څېړني وګورئ دا خبره به ښه درته لځه
سي اوس دلته هم د پښتو د ربط دلايل له اصلي آريائي ژبي سره لاندي راوړم.

## پښتو او اصلي آريائي ژبه (آريک)

د تاريخي او علمي څېړنو په استناد مو دمخه دا وويل چه پښتو د آريک ژبي لور ده، د دې خبري د پلټني او منلو
لپاره بايد موږ د آريائي توکم پخوانو کلماتو ته وګورو، چه له دوي څخه څه پاته دي؟ او هغه کلمې بيا په پښتو ژبه
کي وګورو چه تر اوسه ژوندۍ دي!

او بله دا خبره هم بايد دلته وسي چه آرين توکم له بخدي څخه يا د هند خوا ته ولاړل، چه ژبه ئې سنسکريت
شوه او د ويدا کتاب په دغه ژبه دي، يا هغه قبايل دي چه ايران ته ولاړل، ژبه ئې فرس قديم بيا پهلوي بيا اونسی
پاړسو شوه اما هغه قبايل چه پخپله په بخدي کي پاته شول، کومه ژبه ئې ويله؟

زما دا عقيده ده چه دوي پښتو ويله، ځکه چه وروسته دغه قبايل تر هندوکش را تير شول، دوي د بخدي په نامه
(بخت=پکهت=پښتون) بلل کېدل، او هغه تاريخي نوم دوي تر اوسه ساتلي دي، او هغه پخوانۍ ژبه هم دوي تر
اوسه خوندي کړيده.

دا مطلب به وروسته زه ښه څرګنده کړم، چه پښتانه يعني د پښتو ژبي ويونکي هغه پخواني بخدي يا باختري
آريائيان دي چه نورو ورونو ئې ايراني يا توراني يا مغولي يا هندي اقوامو په تماس خپله اصلي ژبه هيره کړه، مګر
فقط ښاغليو پښتنو تر اوسه ساتلې ده.

په دې کې هېڅ شک نشته چه بخدي آريائيان (۱٤۰۰ ق،م) يعني هغه وخت، چه د هندي آريائيانو دين کتاب

له دغو تاریخي ملاحظاتو څخه موږ دې نتیجې ته را رسیږو، چه پښتانه آریائیان لومړی په بخدي کي اوسیدل له
هغه لومړنی ټاټوبي څخه دوي د هغه ځاي په نامه (بخت=پکهت) د خپلي زړې ژبي سره د (۱۴۰۰ تر ۱۰۰۰ ق،م)
پوري د اباسین غاړو او د هیواد شرقي غرو ته ولاړل، دوي خپل د بخدي پکهت نوم سره له خپلي ژبي وساته او تر
اوسه هم په دغه نامه او دغه ژبه مشهور دي.[1]

د دې تاریخ پلټني په رڼا کي نو اوس تاسي ځیني لغوي دلایل هم واروئ.

## د آریا کلمه

لومړی کلمه چه موږ ئې د پښتو ژبي د اصالت لپاره د لغوي دلیل په څېر پلټنه او څېړنه کوو پخپله د (آریا-آرین)
کلمې دي.

تاسي ته دمخه هم وویل چه دا نوم ډېر قدیم دي، مورخین وائي: هغه اقوام چه د آمو له غاړو څخه په باختر او
هند و ایران کي خپاره شول، دوي ځانونه آرین Aryan یعني اصیل او نجیب او شریف ګڼل، او چه په هند کي
خپاره شول، هلته د تور توکم انسانان دمخه اوسیدله هغو سره آریائیانو جګړې وکړې، او شا ته ئې وشړل، لکه دوي
چه ځانته (آرین) یعني شریف او نجیب وایه، هغو قبیلو ته ئې داسو، یا دیسو Dasyu ویل دا دواړي کلمې په
ریګویدا کي ذکر شویدي.[2]

د آرین د کلمې ځانګې په سنسکریت کي آریا یا اریا Arya او په زند کي ایریا Airya دی چه هغه د شریف او

علاوه په ريگويدا، په اوستا کي هم دا نوم راځي، او هسي وائي: خداي تعالي د آرين مځکه او د آرين توکم او
پښت پيدا کړ.[1]

تر دغو دوو پخوانو کتابو وروسته بيا وينو چه هيروډوټ (٤٨٤-٤٢٥ ق،م) د آرين ذکر څو ځايه کوي. دی وائي
چه ميدي Medes اقوام په پخوانيو زمانو کي آرين Arian بلل کيدل[2] ځکه چه ميدي اقوامو د (٦٥٥ ق،م) په
حدودو کي د ايران په پاي کي يو لوي سلطنت جوړ کړيدي. نو دا ويلاي شو چه د آرين اصطلاح تر دغو وختو
پوري هم په ټولو آريائي اقوامو کي ژوندۍ وه او هخامنشي داريوش (٤٨٦-٥٢١ ق، م) هم په خپل ډبرليک کي ځان
افتخاراً آريائي او د آريا له پښته بللي دي.[3]

د اروپا اوسنيو پوهانو، د دې کلمي په شا و خوا کي ښې ښې پلټني کړي دي، ځکه چه دا نوم آريائيانو له خپلي
پخواني او اصلي ژبي څخه ورسره راوړي و، نو که په نورو ژبو کي د دغه نامه ريښې پيدا شي، هغه ژبي د آرين
اصلي ژبي ته نژدې بللي کيږي!

دوکتور جيگر Geiger الماني محقق وائي، چه آرين له (آر) مشتق دي چه په سنسکريت کي د اصلي او بنياد په
معني دي، او آريا وائي نجيب او شريف او پارسا ته.[4]

علاوه پر دغو اقوالو چه (آر) د اصلي په معنا بولي ځيني محققين دې ته هم تللي دي، چه آريا له (آر) مشتق
دئ، چه پخواني سنسکريت کي د کرهنې يعني کشاورزۍ او زراعت مفهوم درلود، نو له دې جهته آريا کرونکي او
زارع ته ويل کيدي، دا قول د مشهور سنسکريت پوهاند ميکس مولر Mexmuller دي چه دوکتور هنټر ئی هم د
هند د خلقو په تاريخ کي مني او آرين د کرونکي په معنی اخلي.[5]

شخه دي، آريائي اقوامو ځان له دې جهته کښتکار او زارع باله چه له وحشي تورانيو پونده و شخه د دوي توپير
وسي او هر وخت ئې په دغه نامه فخر هم کاوه.[۱]

د دې آريائي نامه اثر پر نورو اقوامو هم شويدي، د بابل او نينوا په آسوري ژبه ئې هم (آري) هغي مځکي ته
ويل چه يوي اوکرلې شوې وي (ارارا) د دغه هيواد په کوشي ژبه د فصل ريبل وه.[۲]

په دې ډول د آريا د کلمې په خصوص کي دوې نظريې د پوهانو تر منځ شته يوه دا وه چه آريا اصيل او شريف
دي دوهمه دا ده، چه کرونکي او بزگر دي.

زما په عقيده د پوهانو دا دوې نظريې په تاريخي دلايلو سره نزدې او يو ځاي کيږي، تاسي به وائي څنگه؟ په
دې ډول:

## د کرهني اهميت په آريائيانو کي

په آريائي قومو کي کرهني ته په خورا درنه سترگه کتل کيدل، دوي ديناً مکلف و چه زراعت ته توجه وکړي په
ريگويدا او اوستا کي د کرهني او زراعت کارو ته د شرافت په سترگه کتل شويدي، اوکرهڼه ئې د شريفو او اصيلو او
پوهو خلکوکار بللي دي په ويدا کي راغلي دي "پوه او دانشمند انسان تل په کرهڼه او جوغ بخت وي"[۳]

بل ځاي وائې:

"اې انسانانو: د غنمو او نورو شيانو د کرهني له پاره په سپاره مځکه سره څيري کړي، ښکلي اربې وچلوئ، او

کرونکي شریف ګڼه شي، او زردشت خلکو ته د کرهڼي او څاروو د پالني تشویق کوي، زارع ته په درنه سترګه
ګوري او د ګاتها په یوه سندره کي بزګران او کرونکي د انسانانو په خورا لوړه او شریفه ډله کي یادیږي.[1]

په دې ډول د کرونکي او بزګر مقام په آریائیانو کي ډیر لوړ ؤ، او د دوي دیني کتابونه په لار ښوونه هر بزګر
شریف او محترم ګڼل کیدي، او په دوي کي خورا لوړه او خورا شریفه اجتماعي دنده دغه زراعت او بزګري وه نو
ځکه هر زارع او بزګر نجیب او شریف و او هر شریف سړی به هم کرونکي او بزګر و، اصیلتوب او نجابت د
زراعت سره لازم و او هر چا چه به دغه اجتماعي وظیفه اداکوله هغه سړی به هم شریف هم نجیب ګڼل کیدي.

## د شریف او زارع تطبیق

دمخه مو ولوستل: چه پوهان د (آریا) کلمه یا د اصیل او شریف په معني اخلي یا د زارع او کرونکي په مفهوم!
دا دواړه مفهومه لکه تاسي چه ولوستل سره یو شي دي ځکه چه په پخوانو آریائي اقوامو کي د دیني کتابو په لار
ښوونه هر زارع نجیب او شریف و، او هر شریف هم زارع و نو ښائي چه په آریائي ژبه کي دي (آر) د اصل په معنا
و، وروسته ځکه چه هر کرونکي سړی شریف ګڼل کیدي، نو هر کرونکي او زارع ته دي (آرین) یعني اصیل ویلي
شوي وي. او یا دا چه (آر) اصلاً د زراعت او کرهڼي مفهوم درلود، ځکه چه هر کرونکي او زارع شریف او اصیل
بلل کیدي، نو به طبعاً د اصالت او نجابت معاني د آرین په کلمه کي مجازاً ګډي شوي وي.

داسي لغوي تحولات او معنوي اوښتني، د مجاز او حقیقت تر منځ په ژبو کي ډیري دي، نو که د (آر) د کلمې
حقیقي معنا اصل او نجابت وګڼو، زراعت به ئې مجازي او که زراعت حقیقت وګڼو، اصالت او شرافت به ئې د
مجاز به ډول وروستني لغوي تحول وي، په دې ډول د پوهانو دواړې نظریې سمي او پر ځاي دي، او د آرین کلمه

هو په پښتوکي د دغو دواړو معناو لپاره چه پوهانو د (آر) په خصوص کي ښوولي دي ريښې او مستعملي ژوندی
کلمې شته، په دې راز:

۱- تر اوسه هم (آره) د اصل او بنياد په معنا موجوده او مستعمله کلمه ده چه اکثر قبايل يې وائي[۱] دا کلمه له پخوا
څخه په پښتو ادب کي هم ځاي لري، او پښتو ادبياتو پخپلو اشعاروکي د يوې مستعملي او ژوندۍ کلمې په ډول را
وړې ده.

زميناوري اکبر چه دګوډ تيمور معاصر دي د (۸۰۰ هـ حدود) هسي وائي:

د غم آره ئې شوه تېنګه زما په زړه کي    د رقيب سره خندا کړي هوسيږي

وروسته يو بل اديب ملا الف هوتک چه بحر الايمان ئې په (۱۰۱۹ هـ) نظم کړي دي وائي:

دی له آره ؤ ښاغلي    څه که سو په وير نتلئ

پير محمد مياجي د (۱۱۳۵) په حدودوکي وائي:

شيخ متي چه خليلي ؤ    دی له آره لوي ولي ؤ

نو آره د اصيل او بنياد په معني د پښتو پخوانۍ کلمه ده چه تر اوسه هم ژوندي ده. او په دې معنا د ډوکتور جيګر
الماني له قوله سره مطابقت لري، چه دی هم آره اصل او آرين اصيل ګڼي.

۲-که د آر دوهمه معنا يعني کښت اوکرهڼه د ميکس مولر په قول واخلو، دا هم کټ مټ په پښتوکي تر اوسه سته
په قندهارکي بزګران واکښتګران د لو بر وخت هسې وايي: (آره آره لور بر غاره) په دې جمله سره د بزګرانو او

خاوره (خاک) چه خاورين (خاکی) د (هـ) په حذف ځني جوړ شوي دي نو که (آره) واخلو او د پښتو له دغو
اصولو سره سم د نسبت (ين) پوري ونښلوو (هـ) غورځي او آرين ځني جوړيږي او ښائي چه وروسته ماقبل آخر زور
په الف تبديل شوي او آريان هم ځني جوړ شوي وي.

په دې ډول آرين منسوب دي د (آره) کلمې ته چه په پښتو کي د اصيل يا کرهني په معني تر اوسه سته او په
پخوانو آريائيانو کي هم په دغو دوو معناو مستعمله و او معنا ئې هم په آريائي پخوانۍ ژبه هم په پښتو (اصيل او
شريف او کرونکي) ده نو چه د (آر-آريا-آرين) د کلماتو ريښې تر اوسه په پښتو کي شته او هم پخواپه دغه ژبه کي
استعماليدل او دا کلمې هم له اصلي آريائي ژبي څخه دي نو دا ويلاي سو چه پښتو د اصالت او قدامت له پلوه
هغي زړې ژبي ته ډيره نزدې ده.

د آريا کلمه په پښتو کي کټ مټ هم مستعمله وه، په پښتو کي دا نوم د علم په ډول د سړو لپاره استعماليدې، د
پښتو به قبايلو کي د يوسف نومي يو زوي (اريا) نوميدي، چه د ده اولاده بادي خيل بولي، افضل خان خټک په
تاريخ مرصع کي ليکي:

"د يوسف پنځه زوي و، يو په کښي اريا نوميده، از بس چه ډير متبکر او مغرور و، بادي ئې باله، اوس ئې هم
اولاد ته بادي خيل وائي"[1] يوسفزي د پښتنو مشهوره قبيله ده، چه تر اوسه هم په دوي کي د آريا اولاد بادي خيل
شته، او دا ځني ښکاري، چه د (آريا) نوم په پښتو کي تر ډيره وخته معمول و.

کي د پامير لوړي ته نژدې و چه د مختلفو اقوامو روايات او د آريائيانو د هجرت له لارو څخه هم دغه زباديږي[1]
پرسي سايکس ليکي چه دا ځاي د آمو او ايګزارت په منځ کي پروت و، چه دغه پامير او بدخشان ته نژدې دي.[2]

دې قديم وطن او ټاټوبي ته دوي پخپله قديمه ژبه (آرينه ويجه يا ويجو) (واج) ويله په اوستا کي چه شپاړس
آريائي هيوادونه ښئي، (آرينه ويجه) هم يادوي، چه د وانګوهي ديتيا Vanghui Daitya د برکتمن روده سره واقع
وه.[3] جيګر الماني او ځيني نور غربي پوهان وايي، چه دا (ارينه ويجه) په غرنيو مځکو کي وه، چه په سير دريا او
زرافشان او آمو اوبيده، او آريائيانو په دغو غرو کي ځانونه د تاتار، او نورو له حملو څخه خوندي کړي وه، او د
(آرينه ويجه) د کلماتو معنا داسي ده: د شريفانو او اصيلانو مځکه يا د پاکزادانو ټاټوبي[4]

د آريا د کلمې په خصوص کي مو دمخه تشريحات او تاريخي او لساني پلټنې ولوستې اوس به راسو، او د ويجه
(واج) کلمه به هم په پښتو کي وګورو، چه سته که نه؟ دا تاريخي کلمه تر اوسه هم په پښتو ژبه کي مستعمله ده، د
قندهار خلق ئې (اويجه) د الف په زور او مجهوله يا؟، او د جيم په زورکي وائي: احمد محمود د خداي پر اويجه
نه پريږدي چه په جمله کي اويجه هم د مځکي او سر زمين معنا لري، او دا پښتو ژوندۍ کلمه په هغه زاړه ډول او
معنا په لږ تغير تر اوسه مستعمله ده، او موږ ته را ښکاره کوي چه له آريائي پخوانۍ ژبي سره پښتو څنګه نزدې ده، او
ښائي چه سنسکريت او اوستا هم دوني قرابت نه ور سره ولري.

## آريا ورشه

راغلي دي. دي آریا ورته Arya Varta د همالیا او بحیرهٔ عرب تر منځ مځکي گڼي،[1] سر ولیم جونس وائي چه د
منو قوانین تر مسیح اته سوه کاله دمخه کښل سوي، خو نوي پلټني دا ثابتوي، چه دوې یا درې پیړۍ تر مسیح دمخه
دي[2]، محققین وائي چه دا نوم هندي آریایانو له پخوا او هغه وخته ور سره راوړي وو، چه دوي له بخدي څخه نه
وه سره خپاره شوي خو د دې کلمې ادبي عمر درې پیړۍ قبل المسیح ته (لکه دمخه چه وویل سوه) رسیږي.

آریا ورته، آریا ورشه هم بلله کیده، او لکه ولسون Wilson چه وائي معنا ئې (د ښاغلیو او اصیلو ټاټوبي) ده[3]
مگر هغه وخت چه دا نوم د هند آریائیانو ورسره یووړ، نو ئې دوني خپورتیا پیدا کړه، چه په پای کي پر ټول هند
اطلاق شو او تر ویدي دورې ډیر را وروسته چه د برهمنانو مدنیت له څلورمي پیړۍ قبل المسیح څخه په هند شروع
شو، نو دوي بیا دغه (ورته=ورشه) واخیست، او د گنگا د رود غاړي ئې (برهمنا ورته) هم وبللې[4] چه له دغه څخه
هم د دغي کلمي زوږ استعمال او ادبي نفوذ ښکاره کیږي. او د آریائیانو یوه زړه او پخوانۍ کلمه گڼل کیږي. علاوه
پر دغو دوو زړو نومو چه (آریا ورشه) او (برهمنا ورشه) دي په آریائي قبایلو کي چه هند ته ولاړل یوه قبیله
Bharata (بهارته) نومیده، چه دوي تر اباسین تیر شول، او په هند کي مدنیت جوړ کړ، او وروسته د دوي د جنگي
کارنامو لپاره (مهابهارته) مشهور رزمي کتاب سو. دې قبیلې د آریائیانو د پخواني نامه (آریا ورشه) پر وزن او ډول د
هند مځکي پخپل نامه (بهارته ورته) یا (بهارته ورشه) وبللې، او وروسته دا نوم د هند ملي نوم شو[5] او هغه زړه
اصطلاح (آریا ورشه) ئې ورکه کړه، خو په دغو درو سره نومو کي (ورته او ورشه) راغلې ده، چه په دواړو ډولو
تلفظ کېده او معنا ئې هم هغه (ټاټوبي او هیواد) و.

اوس به راسو او و به گورو، چه ورشه په پښتو کي سته که یه؟

دا کلمه له پخوا څخه د پښتو په ادب کي هم ځاي لري، او ژوندۍ وه ژوندۍ ده مثلاً ماشوخیل حمید مهمند وائي:

هغه سرکا زمانې د سپو د لوبو    چه ئې نه واهه مزري پل په ورشو

ورشو مرتع او د څړ ځاي ته هم وائي، او دا مفهوم د آریائي قبایلو له ژوندونه سره ښه اړخ لگوي، تاسي دمخه هم ولوستل، چه زراعت او مالداري په دوي کي څوني مهم کارگټل کېدي، دوي هر شي ته د زراعت په سترگو کتل، نو ځکه "ورشو" دوي ته دیناً او مادتاً ډېره مقدسه وه، او دا کلمه له قدیمه په دوي کي پر ښه مرتع او چراگاه اطلاق کېده، وروسته چه دوي هري خوا ته تلل نو دا نوم ورسره ملگري و او دوي پر خپل هیواد او وطن او ټاټوبي باندي ایښووئ.

دلته یوه خبره پاته شوه، هغه دا ده، چه (ورته او ورشه) څه اړه سره لري، او څنگه ورته او ورشه یو له بله سره اوښتي دي. لومړۍ باید دا ووایو: چه آریائي قبایل ټول له باختره او هم زموږ له وطنه تر اباسین اوښتي او هند ته تللي دي، ټول هغه کلمات چه اوس یا پخوا زموږ او د دوي تر منځ، مشترک دي، ځکه چه د آریا د پښت زانگو زموږ د وطن مځکي دي او هندي آریائیان هم له دې ځایه تللي دي نو دا په ټینگه ویلاي سو، چه د هغو زړو کلماتو اصلي اشکال هم باید دلې پاته وي او هر څه تغیر چه وروسته ور پېښ شوي وي، هغه به د نوي محیط اثر وي.

پر دې تاریخي اساس باندي نو دا ویلاي سو، چه ورته هم اصلاً ورشه او دغه د پښتو ورشو وه، وروسته چه آریائي قبایل په هندکي خپاره شول، نو دوي هغه په ورته سره تبدیل کړه خو دواړه ډولونه ئې هم را نقل شویدي.

دا د ورته د (ت) تبدیل، د ورشه په (ش) هم دفعي او یو په یوه ندي، (ت) ډېره په (س) اوړي، او دا تغیر



# نتيجه

تر دې ځايه د پښتو رابطه د اصلي آريائي ژبې (آريك) سره ښکاره شوه، تاسي دلته دري پخواني آريائي کلمې په
اوسنۍ پښتو کي ژوندۍ او مستعملي وليدلې: (۱) آريا، آرين = پښتو (آره) (۲) ويجه پښتو (اويجه) (۳) ورته - ورشه
ـ ورشو پښتو به دغه مبحث کي فقط دغه دري کلمي تحليل شوي، وروسته چه د پښتو تطبيق د نورو آريائي ژبو
(سنسکريت، زند، زړې پاړسو) سره کيږي، داسي ډېر مثالونه او کلمات به راوړم چه تر اوسه زموږ په ژبه کي سته او
ژوندي دي.

## او د دې برخي لنډه نتيجه دا ده

پښتو له هندو اروپائي يعني آريائي ژبو څخه ده ځکه چه د آريائي د پښت زانګو دغه زموږ د هيواد مځکي دي،
نو اصلي آريائي ژبه هم دلې ويله کيده او دلې پخپله پاته ده يا ئې لور پښتو تر اوسه په دغه غرو کي ژوندۍ ده.

د آريائي اقوامو نوري ژبي لکه د ويدا ژبه (سنسکريت) د اوستا ژبه (زند) د پښتو خوندي، او تر دغو دواړو ژبو
پښتو اصلي آريائي مور ته نژدې ده، او تر اوسه هم په پښتو کي زاړه آريائي کلمات له اصلي آريائي ژبي څخه پاته او
ژوندي دي.

# دوهمه برخه

## پښتون او پښتو

پښتون - د لسو تېرو جگره او پښتون - د پکهت ويشنه - پښتون په ويدا کښي - پښتون په اوستا کښي - پښتون او يوناني مورخين - بختي په اسلامي دوره کښي - نتيجه - پښتو - پښتو او د اوسنيو پوهانو آراء - د دغو افکارو نتيجه او د پښتو اصل - پښتو ولي سامي يا عبري ژبه بللې شوې ده؟ - يوه ضروري يادونه ـ پښتو ولي هندي يا ايراني گڼلې شوې ده؟

# پښتون او پښتو

آریائي اقوام چه له خپلي زړې آرینه ویجه Aryana Vaeje یعني د اکسوس (آمو) او سیر دریا له سر چشمو څخه خپاره شول، او په بخدي او باختر کښي مدنیت جوړ کړ، وروسته نو له دغه ځایه بیا د هند او ایران خواو ته ولاړل. دوي ځیني مشهور قبایل درلودل، چه له هغه څخه یوه مشهوره قبیله پکهت=پښتون وه، د دې نامه تاریخي څېړنه او قدامت د پښتو ژبي اصالت او قدامت هم څرگندوي، نو ځکه د کتاب په دې دوهمه برخه کښي مفصلاً لومړي د پښتون پر کلمه او وروسته پخپله پر پښتو بړغیږو.

پښتون: تاسي دمخه ولوستل، چه د باختري آریائیانو یوه ډله تر اباسین (اندوس) پوري وتل، او د دوي یو معروف دیني کتاب ویدا Veda تر اوسه پاته دي، دا کتاب د آرایائی اقوامو په تاریخ کښي ډېر اهمیت لري، د هغه عصر ډېر وقایع څرگندوي، او ځکه چه اکثري برخي ئې زموږ د وطن په غرو او دریابو او مځکو اړه لري، او پکښي بیان شوي دي، نو محققین د ویدا کتاب زموږ د هیواد یو پخوانی کتاب گڼي.

له دې کتابه موږ د هیواد پخواني تاریخي وقایع او حوادث را باسو، او هم د ژبي په تاریخ کښي ښې ښې استفادې ځني کوو، وروسته چه په دې کتاب کښي د ویدي ژبي او پښتو د څېړني وار راشي، مفصلاً به ئې در وښیو، چه دا کتاب څه شي دي؟ خو دلته دغوني بس ده ، چه د ویدا د انشاء او لیکلو نېټه تر ۱۴۰۰ ق، م پوري رسیږي.

که موږ وغواړو چه د پښتو ژبي تاریخ وپلټو، ناچاره یو، چه لومړی دا ځان ته څرگنده کړو، چه پښتون قوم له کومه وخته په تاریخ کښي ځاي نیولي دي؟ او دا اولس زوړ او پخوانی دي که نوي؟

### د لسو ټبرو جگړه او پښتون

Visvamitra نوميدي، دې ريشي روحاني قوه او نفوذ او پوهه درلوده. د سوداس پاچا سره ئې د ستردو Sturdu (ستلج) او ويپاشا Vipasha (بياس) په نيول او فتوحات کښې ډېر کومکونه کړي وه، خو وروسته سوداس پاچا دا ځپل مذهبي مشاور ويوست، او په عوض کښې ئې بل سړي چه واسيستاس Vasistas نوميدي مقرر کړ. د دغو دوو تنو ريقيانو تر مينځ مخالفت او جگړه ونښته، د ويسوا ميټرا ډېر قبايل پر خوا وه، او خلقو ئې په خوله کوله، نو ده ډېر آريائي قبايل سره را ټول کړل، او د سوداس سره ئې جگړه وکړه، خو پاچا بريالي شو، او د انو Anus او دريوهو Druhyu د قبيلو ملکان ووژل شوه.

دا جگړه د پاروشني Parushni (ايراوتي=راويی) پر غاړه پيښه شوي وه، او هغه لس آريائي قبيلي چه پدغه جگړه ئي لاس پوري کړي وو اکثر هغه قبايل دي، چه تر اوسه ئې هم بقايا زموږ په هيواد کي شته، او داسي ښکاري، چه تر دغي جگړي وروسته دوي د هندو ورشوگانو ته ليږد او هجرت بند کړ، او دلې پاته شول، د دغو لسو ټبرو نومونه دا دي:

۱- پکتهه Pakthas (بگتويس=پکهت=پښتون)

۲- اللينا Alinas (د نورستان خلق)

۳- بهالانا Bhalanas (د درهٔ بولان خلق)

٤- شيوا Chivas (د شيوکۍ خلق چه اباسين پر غاړه اوسيدل)

٥- ويشانن Vishanins

٦- انو Anus (چه د پنجاب د راوي رود پر غاړه اوسيدل، او د بريگيوس Bhrigus مشهور روحاني کورنی د دوي ستانه وه).

۷- دريوهيو Druhyus (دا قوم هم د انو سره اوسيدل)

۸- توررواشا Turvasha (دا دوې قبيلې سره ملگري وې).

۹- يادو Yadus

## د پکهت ویشنه

په دغو آریائي قبایلو کي موږ د ژبي لامله فقط له لومړۍ یعني پکهت سره اړه لرو، او له دې تفصیله مو مقصد دا دي چه د پښتون ملت لومړۍ تاریخي وثیقه هم دغه ده، چه نوم ئې په ریگویدا کي یاد شوي دي، او دا څرګندوي، چه دا اولس تر میلاد ۱٤۰۰ کاله دمخه لا هم موجود و، او په آریائي کورنۍ کي نوم او نښان درلود.

د پکهت تاریخ په هغه وخت کي هم ډیر روڼ دي، او هر څوک ئې پیژني، دوي چه له بخدي څخه تلل، څو ډلي شول: یوه برخه ئې پخپله په باختر او بخدي کي پاته شوه، چه دوي وروسته د پارت Parth په نامه بلل کیده، او د قبل المیلاد د دریمي پیړۍ په شا او خوا کي یو د دوي مشر ارساس پارتي د غرب پلو ته ولاړ، او د هري رود غربي خوا ته ئې د خزر تر څنډو پوري مدنیت جوړ کړ، او هغه مځکه ئې هم پخپل نامه پارتیا Parthia وبلله، او هلته دوي د پارت په نامه سلطنت او روڼ مدنیت او بیل ثقافت وموند (د ۲٥٦ ق،م حدود) یوه بله برخه هم له دغو پښتنو څخه د ارمنستان غربي خوا ته ورسیده، او هورې هم د پکهت=پکویس په نامه مشهور وه، او هغه ځاي د دوي په نامه (پکتیکا) بلل کیدئ.[1]

## پښتون په ویدا کي

په ویدا کي مو د پښتنو ذکر ته دمخه اشاره وکړه، ځکه چه دا تاریخي وثیقه د پښتنو اهمیت او ثقافت، او سیاسي او اجتماعي ژوندون د ۱٤۰۰ ق،م په شا او خوا کي ښکاره کوي، نو به دلته لږ څه دغي خبري ته تفصیل ورکو: په ویدا کي پکتها د پښتنو د پاچا په ډول، او پکهت د قوم نوم، څو ځایه او مکرر راغلي دي. هغه انګلیسي ترجمه چه د اروپا مشهور هند پوهاند او مستشرق رالف ټي ایچ ګریفت Ralph T.H. Griffith له ویدا څخه په دوه ټوکه کي ګړیده، د پکهت ذکر ئې په دغو ځایو کي راغلي دي:

۱- دوهم ټوک ۱۸ مخ - اومه برخه - ۱۷ سندره

۲- دوهم ټوک ۱٥۳ مخ - اتمه برخه - ۲۲ سندره

درلوده،[1] له دې سندري څخه څرګنديږي چه پکهت (پښتون) او بهالانا (د بولان يا لغمان خلق) الينا (نورستانيان) شيوا (د انډوس د غاړو و يا د کابل د شيوکي خلق) په يوه جنګ کي سره ملګري وه، او پښتانه په هغه وختو کي له خپلو وطني ورونړو سره مله او متحده وه. بل ځاي هسي وايي:

"اې اسونانو[2] پر خپلو جنګي اربو سپاره شي، پر خپل طلائي پلاز کښيني، اې هغه خلقو چه تاسي بهالايان ياست، هغه مرستي چه تاسي له پکته او ادريګو Adhrigu سره وکړې، نو بابهرو Babhru له خپلو دوستانو څخه پيل شو[3]" په دي سندره کي چه پکته راغلي دي، د ښښتنو پاچا دي، ادريګوا او بابهرو هم د ده ملګري پاچهان دي شاعر د کوم جنګ کيسه کوي، او د پښتنو د پاچا او ادريګو لپاره د سهارنيو ستوريو څخه کومک غواړي له دې څخه ښکاري چه په دغو وختو کي هم پښتنو اداري نظام او مشر او پاچا درلود، او په ګډه او ملګري له دښمنانو سره جنګيدل، د ويدا په بل ځاي کي هسي راغلي دي:

"اې اندرا! ته ډير لوي يې، له تا څخه غواړم، چه موږ ته پېر وري غواوي را کړې! لکه مدهه ياتي تيا Medhyatithia او ني پا تي تيا Nipatithia (د دوو شاعرانو نومونه دي) ته چه دي ورکړي دي هغسي چه د کنوا Kanva ټبر، او د تارسادسيو Trasadsyu شهزاده، او پکته (د پښتنو پاچا) او داساوراجا Dasavraja ته دي ورکړي دي...[4]"

په دې سندره کي شاعر له اندرا (د جنګ رب النوع) څخه پيوري غواوي غواړي، چه د آريائيانو په ژوندون کي ډير اهميت درلود، او هم دوه تنه نور شاعران او د کنوا قبيله او يو شهزاده او بل پاچا او هم د پښتنو پاچا (پکته) د مثال په ډول راوړي، او له اندرا څخه د دوي په توګه غواوي او بډائي غواړي.

له دې سندري څخه ښه څرګنديږي، چه اندرا د جنګ رب النوع د پکهت له دلاوري او جنګري قبيلي سره ډيره مهرباني درلوده، او دا قبيله په هغه وخت کي هم ډيره بډايه او اباته وه ډيري غيلې اوګورمونه ئې درلودل.

د ويدا په بل ځاي کي د پښتنو يادونه هسي شوي ده:

کړ، توروايانا Tvrayana چه تر ټولو موجوداتو ښه ږغ لري، د نذر مشوبات ئې د سيل په څير راتوي کړل، چه مځکه زرغونه او اوبه کړي ...“[١]

لکه پيشل Pishel مشهور ويد پوهاند چه ويلي دي، توروايانا د پښتنو د پاچا نوم دي، د شياوان شاعر سره چه د بريګو زوي و، د پاچا مخالفت ولويد.

شياوانا د آسون له رب النوع سره مينه درلوده، د قربانۍ ځاي ئې په ډيرو ايرو او خوشبويو دود او سمبال کړ، چه د پکهت پر پاچا بري ومومي، خو اندرا د جګرې رب النوع د پښتونو د ننګيالۍ قبيلي پر خوا شو، قرباني ئې منع کړه، هوتاګان چه د قربانۍ د اجزاء لپاره راغلي وه، سره وئې شړل، نو د پښتنو پاچا د اندرا د خوښۍ لپاره مشروبات لکه بهانده رود داسي وبهول او پر دښمن بريالي شو.[٢]

په دې ډول پښتانه تل په جګړو کي پر دښمنانو بريالي وه، او د دوي د پاچا اقتدار هم خورا ډير و، د ريګويدا سندري له دغو جګړو څخه ښه تفصيلات را کوي، چه اندرا هم تل د پښتنو ملګري و، او په جګړو کي د دوي پاچا ته کومک رساوه.[٣]

دا خو پخپله د پکهت يعني د ښتون ډير پخواني تاريخي تذکار و، چه د ويدا په پاڼو کي شوي دي، بيله پکهت څخه په ويدا کي د پښتو د ځينو قبيلو نومونه هم ذکر شوي دي، او دا ځني ښکاري، چه د پښتنو قبايل په هغه وختو کي هم موجود او مشهور وه، مثلاً:

”ديووداسا د ارغنداو او د هراوت پر غاړه له څو قبيلو سره جنګونه وکړه چه نومونه ئې دا دي: ډاسا Dasas پاني Pani بريسايا Brisaya پارواتا Paravata دا جنګونه د هيلبرنټ Hillebrandt په قول د سراسوتي Sarasvati يا هر اوتي يعني د هراوت او ارغنداو پر غاړو وه، دي وايي: چه په دغو جګړو کي د ارا کوزي (اوسنی قندهار) خلق شامل وه، او د ويدا پاراوتا قبيله هغه پاروئتي Parueti ګڼي چه بطلميوس يونانی جغرافيا وال هم د ارغنداو په ورشو کي ښوولې ده.[٤]

کاکړګنې[۱] بریسایا کتې مټ اوس هم سته بړیخ Barech ئې بولي، چه د قندهار په ښوراوک کي اوسي او د هیواد په جنوني څنډوکي تر هلمنده او سیستانه پراته دي، په دوي کي د فتح خان بړیخ کسې تر اوسته مشهوري دي[۲] او په هند کي هم د پنجاب ویرچ Variach قبیله دغه بړیخ ته رسي او د جنوبي هند بهرایج ښار هم له دغه نامه سره اړه لري.

دغسي هم د ویدا پاراواتا چه بطلیموس د ارغنداو پاروئیتي قبیله بللې ده، تر اوسه هم پ ه الکوزوکي پروټ Parut نومي پښه شته[۳] ځکه چه الکوزو هم د اراکوزي خلق دي نو پروټ هم هغه پاراواتا قبیلې ته نژدي دي.

په دي کرښوکي زما مقصد د پښتنو د تاریخ بیانول ندي، بلکه تش دا خبره څرګندوم، چه د پښتون نوم او مدنیت د ویدا همزولي دي، او بیله دې نومه د پښتنو د ډیرو قبیلو نومونه هم په ویدا کي راغلي دي.

## پښتون په اوستاکي (پښتون، بخدي)

تر ویدا وروسته زموږ د هیواد یو مهم تاریخي سند د اوستاکتاب دي، چه د ۱۰۰۰ ق,م په شا و خوا کي نیټه دي داکتاب هم د بخدي، بلخ په ورشوګانوکي کښلي شوي دي، او زموږ د هیواد تاریخي وثیقه ده، په دې کتاب کي صراحتاً د پښتون یا پکهت نوم ندي راغلي، خو موږ دا ویلاي سو، چه دغه کتام هم د دې اولس له نومه خالي ندي، په دي ډول:

دمخه مو وویل: چه آریا د توکم مرکزي هیواد بخدي، باختر، بلخ دي لکه چه ښکاره ده.د ویدا پکهت، د هیروډوت پکتي یا پکتیس سره یو دي چه دغه نومونه بخد او بخت او بیا هم وروسته بخت او پکت او پښت سول، او د بخدي د زاړه نامه ریښه تر اوسه هم په پښتون کي سته. دا نوم په وروستني ویدي ادب کي بلهکا Balhika راغلي دي، چه د ویدا په یوه برخه اتهروا ویدا Atharva Veda کي کټ مټ دغسي ضبط دي، او په پهلوي ادب کي هم بخلي، بخل، باخل، راغلي دي.[٤] په مهابهارت کي بهلیکه Bahlika کښل سویدي[٥] او پانیني

اوستا فرهنگ (ص ۱۱۰) چه لیکي د دې نامه عنصري توري (ب،ا،خ، د، ي) یا (ب،ا،خ،د،ي) دي، چه باخدي یا باختري ځني جوړیږي.

پروفیسر پرزي لوسکي J. Przyluski د دې نومو له نژدیوالي څخه دا نتیجه اخلي، چه دغه ټول نومونه د بلخ دي[۱] او جکسن Jackson وایي: د اوستا په هغه پهلوي نسخه کي چه له سمرقنده را وتلي ده، او د اتمي میلادي پیړۍ لیک دي، بخل بامیک په اتم باب کي راغلي دي، چه دغه اوسني بلخ ځیني مراد دي.[۲]

اوس نو د دې نومو د اوښتلو سلسله وګورئ.

د ویدا پکهت: (پ) به (ب) اوړي، ک په (خ-ښ) اوړي، (ت) په (د) اوړي، نو پکهت =بخت = پخت= بخد =پښت.

د اوستا بخدي: اصل پکهت یا بخت یا پښت و، وروسته بخدي د دوی په نامه د ښار نوم شو.

## دا نوم

د سنسکریت او اتهروا ویدا: بلهیکا سو. او د:

مهابهارت: بهلیکه سو. وروسته:

د پهلوي: باخل، بخل او

د لومړنۍ پاړسو: باختر، بلخ سو.

د دې ټولو ریښه هغه پکهت او پښت دي، چه وروسته د پښتون نوم ځني زیږیدلي دي، او دا نوم تر اوسه هم ژوندي دي، نو هیڅ شک نه پاتیږي، چه د اوستا بخدي داسي اوړي: بختي=ښندي، پښتي. چه د یونان مؤرخینو هم پکتي، پاکتي راوړي و.

## پښتون او یوناني مؤرخین

Pactyica په نامه یادوي چه د انډوس Indus (اباسین) پر دې څنډه واقع دي. او خلق ئې ډېر عښتلي او مړني دي.

د دوي کالي پوستینان دي، وطني غشي او لیندۍ او چړې لري، په دود او چال کې باختري خلقو ته ورته دي.[١]

هغه وخت چه سکائي سلاکس Scylax یوناني امیر البحر د داریوش (٥٢١-٤٨٦ ق،م) له خوا د بحیرهٔ عرب د غاړو د کشف په کار مامور سو، نو دي د کاسپتیروس[٢] Caspatyrus له خوا د پکتیکا پر لار اندوس ته ولاړ، او په کښتۍ کې سپور سو، او بحیرهٔ عرب ته له دغي لاري په اندوس کې ورسیدي[٣] سکائي لاکس پخپله سیاحت نامه کې د پکتیکا ذکر هم کړي دي.[٤]

علاوه پر دغه هیروډوت د ارمنستان په ١٣ ستراپي کې هم پکتیکا راوړي او دا د پښتنو هغه برخه ده، چه دمخه موږ در وښووله او د پارتیا څخه غربي خوا ته تللي وه، او هیروډوت ئې په ارمینیا Armenia کې نوم او بیان راوړي دي.[٥]

د یونان یو بل جغرافیا لیکونکي بطلمیوس کلودیوس Ptolmey Claudius هم د پښتنو هیواد "پکتین" یاد کړي دي، دي وایي: چه پکتین د پاروپامیز و جنوب ته دي دا ځاي د پکتیانو مسکن دي.[٦]

بطلیموس چه تر هیروډوت را وروسته د دوهمي میلادي پیړۍ په لومړۍ نیمه کې ژوندی دي په لوړ ډول د پښتنو هیواد راښئي او دا ځني ښکاري چه په دغه وخت هم د پښتون شهرت په مدني دنیا کې ډېر و، او دا قوام هر چا پیژاند.

د ویدا پکهت د یونان د جغرافیاوالو او تاریخ لیکونکو له خوا پکتي، پکتیس او پکتویس Paktves ضبط شوي دي او داسي معلومیږي، چه دا تغییر د یوناني ژبي د لهجې او خصوصیت له پلوه دي، لکه چه د اروپا پوهان اکثراً دغه مني، پروفیسور لاسین Lassen چه د یوناني باختري پاچهانو تاریخ ئې کښلي دي لومړۍ پلا ئې د یونان پکتویس له اوسني پښتون سره تطبیق کړ. وروسته دا نظریه نورو پوهانو لکه ترومپ Trumpp او ګریرسن

کړه او اوس تړول مورخین د ویدا پکهت او د یوناني مورخینو پکتویس دغه پښتون ملت ګڼي[1] چه د دوي مدنیت او د نامه تاریخ ډېر قدیم دي او تر ۱٤۰۰ ق،م پوري رسیږي.

## بختي په اسلامي دوره کي

دا نوم تر اسلام وروسته هم ژوندي او مستعمل و په دې ډول: د باختر او بخدي د پښتنو اوښان پخوا مشهور وه. بارتړولډ مستشرق وايي، چه سلمانا سارد آشور دوهم پاچا په ۸٤۳ ق،م یو مخروطي ستون جور کړي دي، او د بختي اوښانو تصاویر پر هغه ستون تر اوسه سته دغه اوښان به تل له باختره د پاچهانو دربارو ته د ججې او خراج په ډول وړاندي کیدل[2] اسلامي مورخین هم بختي اوښان ذکر کوي، چه د سیستان او کابل او بلخ څخه به تل د عربو خلفاو دربارو ته استول کیدل[3] په اوسني پاړسو او پښتو کي هم بختي اوښان مشهور دي او د افغانستان په اسلامي تاریخو کي هم "اشترهاي بختي" ذکر شوي دي[4] او د بلخ اوښان ئې بختي بلل لکه چه په ۱۰٤۱ هـ د بلخ والي نذر محمد خان د شاه جهان د هند پاچا و حضور ته هدایا ولیږل او محمد صالح لاهوري ئې ذکر هسي کوي: "در همان نزدیکي سي و پنج راس اسپ و سه زره و ده شتر بختي نر و ماده بطریق پیشکش ګذرانید."[5] دا اوښان هم پښت او بخت یعني بخدي ته منسوب دي او د پښتون د کلمې ریښې هم په دغو نومو کي دي.

## نتیجه

له دغو تړولو تاریخي پلټنو څخه اوس دا نتیجه اخلو چه الفاظ او کلمات او نومونه تل د زمانو د تیریدلو او تللو سره اوړي یعني ځني حروف زیاتیږي، او ځني کمیږي، ځني له منځه وزي او کوم توري چه په خوله کي مخرج سره نژدې وي یو له بله سره اوړي مثلاً د پکهت کلمه (پ،ک،هـ، ت)لري.

پ به ب اوړي لکه: د پاړسو شب = د پښتو شپه

د هندکو پکاول = د پښتو پخول

خ په ښ اوړي لکه: د پښتو خاغلي = د پښتو ښاغلي

د پښتو ښکلي = د پښتو خکلي

د ببنتو خار = د پښتو ښار

(هـ) چه ملفوظه نه وي حذفيږي لکه: د هندي کهر = د پښتو کور

د پښتو ستنه = د پښتو ستن

د پښتو لمنه = د پښتو لمن

د په ت اوړي لکه: د پاړسو آباد = د پښتو ابات

د عربي زياد = د پښتو زيات

دا د اوښتني اصول په آريائي ژبوکي ډير باب دي، او ډيري کلمې په هندي او پښتو او ايراني ژبوکي يو له بله سره اوښتي دي، نو (پکهت، بخدي، بخت، پخت، پښت) ټولي له يوې کورنۍ دي، او په پاي کي له دغي آريائي قديمي ريښې څخه د (پښتون) نوم جوړ شوي دي.

## پښتو

اوس چه تاسي د پښتون د کلمې زړې ريښې وموندلې، او په زاړه تاريخ ئې هم پوه سواست نو به د هغو تاريخي پلټونو په سيوري کي تاسي ته دا خبره زياده سي، چه پښتون د ريگويدا تر ليک يعني تر ١٤٠٠ ق،م لا دمخه يو مشهور او نوموړي او ننگيالي ملت و، وروسته هم په هره دوره کي مورخينو وپيژاند او ذکر ئې په قديمو او نوو تاريخي کتابوکي راغلي دي.

يو اولس چه هسي روڼ تاريخ لري، مدنيت لري، ثقافت لري، له پخوانو زمانو څخه اداري نظام او حکومت او پاچهان لري، د دې ټولو شيانو وجود او خوندي کول، په يوه قوي او ژوندۍ ژبه اړه لري، ځکه چه په ټولو تاريخي

هم د يونان مورخينو انديکه Indika ضبط کري دي[1] که د دغي قاعدې سره سم يو مجهول (و) په پاي کي ور واچوو، ځکه چه آخر حرف علت (ی) هر وخت لويږي، نو به هندکو يا اندکو Indko ځيني جوړ شي، چه پښتانه د هنديانو ژبي ته وايي، او چه کلمه سره سپکه او تخفيف شي نو (انکو) يي هم بولي، يو شاعر وايي زه خوار پښتون يم انکو مي څه زده؟ راته وئيږي "مارا تمهارا" دا قانون عام دي، پښتانه خپل ګاونډي اقوام ديګان Digan بولي او ژبه يي په هغه قاعده ديګانو Digano بولي. دغسي هم د پاړس ژبي ته پاړسو Parso وايي نو که د ريګويدا د پکهت=پښت په پاي کي پر دغه قاعده برابر يو مجهول (و) زيات شي، پکهتو=پښتو ځني جوړه شي، چه معنا يي د پښتنو ژبه ده. ځکه چه د (پکهت=پښت) نوم زوړ دي، نو د پښتو نوم هم هغوني پخواني دي.

پښتو خو اصلاً د ژبي نوم و، وروسته دې کلمې يو بل ادبي مفهوم وموند چه په پښتنو کي دغه اجتماعي مقصود هم ډير مهم او د غور وړ دي پښتو که څه هم يوه کوچنوټې کلمه ده، مګر د مفهوم له مخي هسي ارته او پلنه شوه چه د پښتنو ټول اجماعي نظام ئې په لمن کي ونيو او اوس پښتانه خپل ټول عنعنات، ملي اخلاق، پښتني، ښيګړي، ملي دودونه او جالونه يعني خپل ټول اجتماعي او روحي نظام د "پښتو" په نامه يادوي، د کلمې د مفهوم دا وسعت او ارتوالي دي چه پښتانه د پښتو له کلمې سره ډيره مينه لري، او پښتو د دوي د مليت څرګنده نخښه ده.

که يوه پښتانه ته وويل شي، چه پښتو نلرې، دا لوي ښکنځل دي، ګويا د ټولو انساني صفاتو نفي ئې ځيني وکړه نو د پښتنو په حياتي قاموس کي د پښتو لنډه ترجمه دا ده "پښتو: يعني د ټولو ښو انساني صفاتو مجموعه، او د ښتني عنعناتو او ښو اخلاقو او ښو دودونو بنسټ."

لکه پښتو چه د ژبي له نامه څخه چه محض علم وه يو بل ملي او اجتماعي ارت مصداق موندلي دي، دغسي هم د پښتون کلمه پر خپل تش علميت نده پاته. پښتون که د صفت په ډول وويل شي، هلته نو داسي معنا ورکوي: يو سړي چه په ټولو انساني شريفو او ښو اخلاقو متصف وي، مخصوصاً رښتين او دلاور او د عزم او کلکي ارادې خاوند ته پښتون وايي. په دې اجتماعي او اخلاقي مصداق پښتو او پښتون هسي استعماليږي:

هوتک خان پښتو کړي ده. يعني يوه کار ته ئې عزم او کلکه اراده کړيده، او له هغه څخه نه تيريږي. پر خپله

پښتون کیدل: پر عزم او اراده په شجاعت او دلالوري دریدل، او څرګند اعلان کول، سپیڅلي اخلاق او احساسات او ښکلي انساني عواطف درلودل. دا اجتماعي معاني او مصادیق ډیر دي، دلته د دې کتاب وظیفه نده، چه د پښتو او پښتونوالي زیاتي څیړنه وکړي، فقط په دغه یوه اشاره بسنه کوو.

## پښتو او د اوسنیو پوهانو آراء

تر ډیره وخته پښتو ژبي ته د چا پام نه و، او لکه خوشحال چه ویلي و "بکره او پیغله وه" په نونسم عیسوي قرن کي چه د اروپا علماء او پوهان شرق ته را شیوه سول، نو د شرق د ژبو او علومو او زړو نخښو په پلټنو کي دوي ژبي هم وپلټلې او زده ئې کړې، دغو پوهانو یوه نوې څانګه د علم او تحقیق په دنیا کي بیرته کړه، چه هغه استشراق Orientalism او دا ډله عملاء مستشرقین Orientalists بلل کیږي، او موږ په پښتو لومړنی ته خاتیځ پوهنه او پوهانو ته ئې خاتیځ پوهاند وایو، چه په پاړسو ئې خاورشناس بولي. دغو پوهانو یقیناً تاریخ او علم ته ښکاره خدمتونه کړي دي، دوي د مصر زاړه خطوط او د ایران ډبر لیکونه او د هند او چین زړې ژبي زده کړې، مړې ژبي چه اوس ژوندۍ ندي، او نه ویلي کیږي، دوي بیرته ژوندۍ کړې، او پر دغو باندي غټ غټ کتابونه وکښل، اصول او قواعد او د خط او لیک لیاري ئې کشف کړې، په دغه پوهانو کي یوه ډله هغه خلق وه، چه دوي د ارایائي مدنیت د پلټني لپاره زیارونه کښل، د هند آریائي ژبي ئې زده کړې، زاړه کتابونه ئې ولوستل او پخپلو ژبو ئې ترجمه کړل، د ایران ژبي ئې وپلټلې، زړه پاړسو، پهلوي ئې ولوستي، او له دې ډلي څخه یو څو تنه داسي هم دي، چه دوي پښتو ژبه زده کړه، او ډیر علمي تحقیقات ئې په دغه ژبه کي وکړل، د پښتو قواعد او ګرامر ئې ضبط کړل، لغات او محاورات ئې وکښل، بدلي او اشعار ئې ټول کړل، زاړه کتابونه او آثار ئې وموندل.[1]

د موسیو برتلز روسي خاتیځ پوهاند په قول اروپا کي لومړۍ پلا ګولډن شتت الماني پر پښتو یو کتاب وکښ او ځیني لغات ئې پکښي را ټول کړل، دا کتاب په ۱۷۹۱ع په سینټ پترز بورګ کي طبع او څپور شو له دي څخه موږ ته څرګندیږي چه یو سل او پنځوس کاله پخوا یعني یوه نیمه پیړۍ دمخه لا د اروپا پوهانو دې خوا ته مخه کړې وه،

هسي وائي: پښتو نه په ترکیب نه په لغاتو او نه به ګرامرکي له عبراني Hebrew او چالدیک Chaldic سره څه مشابهت لري، بلکه دا ژبه له انډو تیوتن Indu-Teutonic ډلي څخه ګڼله کیږي او پښتانه د افغانستان اصلي او پخواني اوسیدونکي دي.[1]

مورخ اډلنګ Adelung لیکي: "که څه هم زه په پښتوکي ډیر معلومات نلرم خو دا ویلاي شم، چه دا ژبه ډیره اصیله او ممتازه او وتلې ژبه ده."[2]

مستر الفنستون M.R. Elphinstone مشهور مورخ هسي لیکي: "د پښتو بنسټ او آره په آساني سره نه معلومیږي، ځکه ډیر الفاظ چه دا ژبه ځیني جوړ شوې ده، او هم خورا ډیر افعال او ادات ئې داسي دي چه ، آره او ریښه ئې نده معلومه، او دا هغه الفاظ اوکلمات دي، چه د ژبي اصلي اجزاء ګڼل کیږي، بیا هم ځیني له دغو الفاظو څخه له زند Zend او پهلوي ژبو سره نژدیوالي لري، مثلاً پلار، مور، خور، ورور... دي تر لوړو خبرو علاوه دا همم وائي چه: "په ۲۱۸ پښتوکلماتوکښي ما پلټنه وکړه، و مي کتلې، یوې هم له ساماني ژبي سره کم لږ مشابهت نه درلود، خو په دغو الفاظوکي په سلوکي پنځه تر لسو هسي کلمات وه، چه له کردي Kurdish ژبي سره یې نژدیوالي لاره، ځکه چه کردي ژبه هم له هندو ژرمن ژبو څخه ده، نو سړي ویلاي شي چه پښتو هم له دغو ژبو څخه ده..."[3]

مسټر راورټي H.G. Raverty چه د پښتو ژبي لوي پوهاند او پلټونکي دي، او ډیرکتابونه ئې پکښي لیکلي او خپاره کړي دي، د خپل پښتوګرامر د (کلکتې طبع ۱۸۵۶ع) په مقدمه کي مفصلاً د پښتو پر آره او سټه بحث کوي او د آریائي او سامي ژبو سره ئې دګرامر او الفاظو له پلوه پر تله کوي، وروسته دې نتیجې ته رسیږي، چه:

"د پښتو او زند او پهلوي ژبو تر منځ ډیر شباهت سته، د پښتو په پخوانوکتابوکي لکه ژند، حروف د حرکاتو پر ځاي کښلي شوي دي، نو ځکه زه وایم، چه پښتو د سنسکریت او ژند سره ډیر نژدې والي او له پهلوي سره هم ټینګه اړه لري... که د پښتو ژبي د ټولو سیمو ادبیاتو ته وګورو را ښکاره کیږي چه دا ژبه په ادب کي هم ډیره بډایه

ژبي بر اصالت هسي وائي: "له ټولو ځپلو پلټنو څخه په لنډ ډول دا نتيجه اخلم: چه پښتو اصلاً د سنسکريت يوه خور ده، او ځکه چه د هند او ايران تر منځ ويله کيږي، نو په پيړيو پيړيو د پارسي اثرونه پر لويدلي او ډير الفاظ ئې سره گډ شوي دي، خو سره د دغه هم دې ژبي خپل ځان او قواعد نه دي بايللي، او د فيلالوژي له اصولو سره ئې سم دغه نوي شيان، پخپل قالب کي اچولي دي او په خورا ښه ډول ئې پر خپل رنگ را اړولي دي..."[١]

بل اروپائي لوي عالم او پښتو پوهاند خمز دارمسټټر J. Darmesteter فرانسوى دي، چه د ده يو کتاب د پښتو ملي سندري Chants Populaires des Afghan په ١٨٨٩ع نشر سوي دي، دا محقق پخپله د پښتونخوا په غروکي گرزيدلي، او ډير ملي اشعار ئې (د پښتونخوا هار او بهار) په نامه سره را غونډ کړي دي، دي د پښتو په خصوص کي دا نظريه لري: "پښتو له هندي لهجو څخه نده، او نه له پاړسو او پهلوي څخه پيدا شوي ده، بلکه دا ژبه د زند (اوستا) يا د يوې بلي ژبي سره چه زند ته ورته وي، ډير مشابهت لري. پښتو اشعار د سپيڅلتوب او طبيعي والي له پلوه خاص امتياز لري، بدايع او نازکخيالي ئې ډيره سپيڅلي او سوچه ده... پښتانه اخبار نلري، خو د دوي اشعار ټول وقايع او روزمره پيښي څرگندوي، دا بدلي د ښتنو تاريخ هم دي..."[٢]

خلاصه ډارمسټېر د پښتو به نسبت دا عقيده لري، چه د اوستا له پاتو برخو څخه يوه ژبه پښتو پاته ده، او دا ژبه د اوستا يوه مخصوصه ښانگه بلله کيږي، او د زند سره ډيره نزديکي لري، او اړيکي ئې ډير ور سره ټينگ دي.[٣]

د اروپا د علماو څخه ډوکتور ارنست ترومپ E. Trumpp هم ډير محقق پوهاند دي چه په ١٨٧٣ع ئې د پښتو گرامر وکيښ. دي هم په دغه کتاب کي د پښتو پر اصل او ريښه هسي رأي ښکاره کوي: "زه په ټينگه او ډير اعتماد دا ويلاي سم، چه پښتو اصلاً له غربي (ايراني) ژبو څخه نده، بلکه په اصلي انډو آرين Indu Aryan ډله اړه لري، خو سره د دغه هم خالصه هندي نه بلله کيږي بلکه پخوانو زمانو څخه دا ژبه زړه مستقله ژبه ده، او په لومړي سر کي هم له هندي او ايراني ژبو څخه بيله شوې ده خو بيا هم له دواړو سره په خصوصياتو کي اشتراک لري، او مقتدره او برجسته ژبه ښکاري..."[٤]

علت دا دي: چه دغه ژبي له یوې ریښې څخه را وتلي دي، او د آریائي ژبو تر انشعاب دمخه دوي سره یو وې. او هم دوه درې زره کاله پښتو له دغو ژبو سره ګاونډۍ وه، او متوالي اړیکي ئې سره درلودل..." [1]

بل له نژدو خللقو څخه چه د پښتو پلټونکي ګڼل کیږي موسیو برلز روسي معاصر مستشرق دي. دا سړي د لیننګراډ په اکادمۍ کي د پښتو په خصوص کي داسي رأي ښکاره کوي:

"پښتو د خپل تاریخي قوت او قدرت سره یوه پخواني ژبه راغلي ده او په اوږدو اوږدو زمانو ځیني تغیرات هم ور پیښ شوي دي خو دا تحولات داسي ندي لکه پر پاړسو چه وارد شوي دي، پښتو ټوله پردي لغات په ځان کي حل کړي، او پر خپلو اصولو ئې را اړولي دي، او د ځان جزو ئې ګرزولي دي، د اروپا علماو له ډیره وخته د دې ژبي قواعد، لغات، اشعار سره ټول کړي دي. ډارمسټټر او فریدریک میولر چه په پښتو کي څه پلټني کړي دي، داسي عقیده لري چه پښتو د زند یا له یوې بلي ژبي سره لکه زند ډیر مشابهت لري، میولر دا خبره پر علاوه کوي چه د پښتو قرابت له زند سره هسي دي لکه د اوسني پاړسو څپلوي چه د پخوانۍ هخامنشي پارسي سره ده، ارنسټ ترومپ وایي چه پښتو د آریای ژبي یوه مستقله څانګه، او د هندي او ایرانیو څانګو تر منځ منځګړې ده، د ترومپ دا نظریه پروفیسور فون سپیګل Von Spiegel او دکتور هارنل Hoernle هم په ټیمګه مني، ګریرسون Grierson او پال تیډسکوي ئې هم تائید کوي... که څه هم د علماو په رایو کي ځیني کوچني اختلافات لیدل کیږي خو بیا هم ټول متفق دي، چه پښتو یوه زړه او قدیمه ژبه ده، او هندي او ایرانیو څانګو سره د خور نسبت لري..." [2]

میجر لوریمر Lorimer د پښتو پر صرف او نحو یو مشهور کتاب کښلي، او په ۱۹۱۵ع په اکسفورډ کي چاپ شوي دي، دی د دې کتاب په پاې کي پر پښتو هسي رأي ښکاره کوي: "پښتو که څه هم تر اوسه نه ده روزلي شوې خو ښه ښه صفات لري، که څه هم تر اوسه ډیره ارته ژبه نه بلله کیږي، خو د خیالاتو د ښکاره کولو لپاره ډیر قوت لري، الفاظ ئې مؤثر او کلک او څرګند دي، دا یوه ژوندي ژبه ده، ځانله خپلواکي او مهم د امتیاز خاصیتونه لري، چه له هندي او نورو ژبو څخه ئې په دغه خاصیتو سره بېلولای شو، که څه هم د پارسو په توګه نازکخیالي او

وروستني ډېر محقق ژب پوهاند سر جي، اي، ګریسن G.A.Grierson د فلسفي او ادب ډوکتور دیي، چه لنګوسټک سروي آف انډیا Linguistic Survey of India ئې په اوه جلده کي لیکي ده، او د دې کتاب لسم ټوک د پښتو بحث لري، د ده آراء د پښتو په خصوص کي په لنډه ډول لاندي راوړو:

آریائي اقوام د خیوا، خوکند او بدخشان تر منځ پخپله اصلي مځکه کي اوسیدل، له هغه ځایه یوه ډله تر هندوکش را واوښتل، د کابل له درو څخه هند ته تیر شول، او بله ډله هم د ایران پر خوا ور شیوه شوه، د دغو دوو ډلو ژبو ته هندو آرین یا هندو ایرانین Indu Aryans ژبي وایو، له قدیمي زمانې څخه دا آریانان پر ډېرو قبیلو ویشل شوي وه، مثلاً د داریوش Darius (۵۲۲-٤٨٤ ق،م) په ډبر لیک کي دوولس قبیلې ذکر شوي دي.

او هري دغي قبیلې ځانته ژبه درلوده، خو دوني ښکاري چه د دغه ډبر لیک زاره پاړسو Old Persian چه په پارس کي ویل کیدله او د شرق ژبه یعني اوستا Avesta سره بیلي دي اوستا اصلاً شرقي ژبه وه، او ډېرو پوهانو د باختر Bactria ژبه بللي ده، نو موږ ځیني آریائي ژبي د پاړسو له نسله ګڼو او پرسک Persic ئې بولو، او بله ډله نا پاړسو non-Persic ګڼو. ایراني او هندو ژبي دواړه له یوې ریښې څخه، او سره نژدې دي، خو وروسته یو له بله سره بیلیږي، که د اوستا ډېر پخواني اجزاء د ویدا د سنسکریت سره پر تله شي، دا مقصد ښه ځني ښرګندیږي، خو هر څوني چه وختونه ډېر پر تیر شول، دا دواړي ژبي ډېري سره لیري شوې، دلته د هندوکش په جنوب او د هند د شمال غربي سرحدو پر خوا ځني ژبي لکه ډارډي Dardic او پیساچا Pisacha پر خپل زاړه حال پاته دي، او دا ژبي تر هندي او ایراني ویش دمخه ځیني آریائي ذخایر لري له هغو ژبو څخه چه موږ ئې ناپاړسو non-Persic بولو، او د میډي Medic ژبي اطلاق هم پر کیداي شي د پامیر ژبي دي، لکه غلچه Ghalchah او بدخشي Badakshi دغسي هم اورمړي Ormuri او بلوڅي Baluchi. له دغو ژبو څخه پښتو هم د افغانستان د یوې مهمي برخي او ډېروګاونډیو قبایلو ژبه ده، او تر څلوویښتو ملیونو پوري په دې ژبه خبري کوي.

د دې ژبي نوم پښتو دي، چه د افغان ملت ژبه ګڼله کیږي، مګر د افغان نوم ایرانیانو پر دوي ایښي دي اصلاً دوي هغه پکهت Pakthas قوم دي، چه په ریګویدا کي نوم راغلي او وروسته هیرډوت د پکتویس Paktves په

د آريائي ژبو په شرقي ډله اړه لري، دوکتور ترومپ پخپل پښتو گرامر کي په ۱۸۷۳ع په خورا قوي ډول ذکر کوي، چه غربي (ايراني) ژبه نده، بلکه په هندي آريائي ژبو کي داخله ده، دا نظريه دمخه پروفيسور وان سپيگل پخپل کتاب Eranische Alterthumskunde کي هم تائيد کړې وه، او هم دوکتور هورنل Hoernle پخپل کتاب د گاوړي ژبو گرامار Grammar of the Gaudi Language کي هم دغه نظريه مني، خو لومړۍ پلا ډارمسټټر د هند د فيلالوژيک وفد په راپورت کي په ښه ډول وڅيړله (۱۸۸۷ع) او په بل کتاب (د پښتو ملي سندري) کي وويل[١] چه پښتو په زند يا په بله داسي ژبه اړه لري، چه هغه هم زند ته ورته وي.[٢] دا وه دگريرسن نظريات چه د ده دکتاب لمړيو مخو څخه مو لنډ کړه، تر دې وروسته دي د پښتو ادب پر تاريخ لنډ نظر کوي، او بيا نو مفصلاً د پښتو گرامر او لغات او لهجې د نمونو سره ضبط کوي، چه دلته زياتي تر دې زموږ له بحثه سره اړه نلري.

## د دغو افکارو نتيجه او د پښتو اصل

په لوړو کړښو کي موږ د اروپا د پوهانو د افکارو يوه لنډه نمونه تاسي ته د پښتو په خصوص کي وړاندي کړه، له دغو نظرياتو څخه موږ کولاي سو، چه يوه علمي نتيجه په لاندي ډول واخلو، او هغه څه چه مو دمخه د پښتو ژبي د تاريخي اصالت په خصوص کي وليکل ښه پسې تائيد کړو.

د اوسنيو پوهانو له علمي پلټنو څه خو لومړي دا مسئله ښه ښکاره شوه، چه پښتو يوه آريائي ژبه ده، له سامي او عبري ژبو سره کومه اړه نلري، په آريائي ژبو کي هم پښتو د ميولر او ډارمسټټر په قول له زند يا زند غندي له بلي ژبي څخه را وتلې ده، مگر تر دغو ټولو د ډوکټور ترومپ نظريه حقيقت ته نژدې ده چه پښتو د ايراني او هندي آريائي ژبو تر منځ د اتصال حلقه ده[٣] او په تاريخي دلايلو بايد دا ومنو، چه پښتو ژبه له اصلي باختري ژبي يا آريک څخه مستقلاً را وتلې، او مستقيماً د زند او سنسکريت خور ده. په راتلونکو مخو او څېړنو کي به تاسي د دې تاريخي حقيقت دلايل او براهين مفصلاً ولولي، او دا خبره به د يوه تاريخي مستند حقيقت په ډول درته ښکاره سي.

کورنۍ څخه ده، مگر دا خلط اوګډون عارضي دي، او د اسلام له مقدس دین سره د عربو تسلط راوړي دي. که نه وي تاسي به ئې په نورو جلدوکي ووینئ، چه د اسلام په ابتداء کي پر دې ژبه د عربي اثر لږ ؤ، اوکورټ د هغي ژبي کلمات او لغات نه وه په راګډ شوي، د پښتو د اسلامي لومړۍ دورې ادبي آثارو او سندرو ته چه ګورو، سوچه او لغړ پښتو دي.

یو بل علت هم ښائي چه دې خبري ته وي، او هغه دا دي چه عبري او یهودي توکم له پخوانو زمانو څخه د آمو پر غاړو او زموږ د وطن په ښاروکي خپور شوي و، مسټر فرلانګ په ۱۸۹۷ع کي لیکي: چه د سیریا یوه پاچا د یهودو ډیر اقوام له بیت المقدسه د خراسان خوا ته وشړل، دا یهود په ۶۳۰ ق،م په باختر او د هري رود پر خواو هستیدل، دوي وایي، چه هرات په تورات کي د هارا په نامه راغلي دي.[١]

دا نظریه چه آریائي مدنیت له سامي ثقافت سره په ویدي زمانوکي هم ارتباط درلود، د پوهانو له خوا هم څه نه څه څرګنده شوې ده، مثلاً ډوکتور بریډل کیت D.R. Berriedalekeith د ایډنبرګ یونیورستي د سنسکریت پروفیسور هسي لیکي: " لږ لږ اشارات موجود دي، چه ویدي خلقو له سامي بابلیانو Babylon Semitic سره هم اړیکي او روابط درلوده، د ریګویدا په یوه عبارت کي چه بینکناټا Benkanata راغلي دي، او هندي Bikander ئې ریښه ده، د ځینو بابلي الفاظو سره ورته دي، دغسي هم بړیبو Bribu نوم چه د هند په اصطلاح مشهور ښندونکي دي، مسټر ویبر Weber له بابلي سره نښلولي دي.[٢]

دغسي هم د منا mana کلمه په ریګویدا کي راغلې، او هر ځاي د طلائي golden صفت هم ور سره دي، په ټینګه د یوناني mina سره نښلي، چه یونان هم له فنیقیانو Phoenicians څخه اخیستې ده[٣] دغسي هم پرسو Paracu چه د تیشې او تبر په معنا ده سامي اصله ګڼل شوې ده، خو دا ټوله یقیني ندي، اما سره د دغه هم سړي ویلاي شي، چه سامي لوي مدنیت د آریائي خلقو سره نژدې اړیکي درلوده، که څه هم په ریګویدا کي ظاهراً نا آریائي non-Aryan عناصر نه ښکاري، خو بیا هم ځیني ګوچنۍ ډلي سته، چه د دوي د مدنیت اوضاع له سامي

عربو مورخینو هم له خورا پخوانۍ زمانې څخه د بني اسرائیلو خروج د خراسان پر خواو ذکر کړي، او دا ئې راوړي دي چه د یهودو ځیني ډلي پر دې خواو آبادي وې[1] که موږ د جغرافیا پخواني کتب وپلټو، هم داسي ښکاري، چه د اسلام په لومړۍ دوره کي په بلخ او هرات او نورو ښاروکي ځیني یهود اوسیدل، مثلاً حدود العالم د ۳۷۲ هـ تالیف د گوز گانان مرکز او پایتخت "جهودان" بولي او وایي چه په گوزگانان (د اوسني میمنۍ په حدودو) کي د عربو ځیني ډلي هم اوسیدلې چه پونده وه، او د خراسان تر نورو عربو دوي سره پاشلي پراته وه.[2]

له دغو تاریخي دلایلو څخه دا ویلاي سو چه د امو په جنوبي ورشوگانو او دگوزگانان او خراسان په حدودو کي د اسلام تر وختو پوري لا هم یهود او عرب یعني سامي خلق موجود وه، دا خو طبیعي خبره ده، چه د دوو قومو گډون او نژدیوالي د دوي پر ژبو او اخلاقو یو له بله اثر سره کوي، نو ښائي چه هم د دغه اثر نتیجه وي، چه په پښتو ځیني عبري یا عربي لغات گډ شوي وي، او له دغه کیفیته څخه ځیني خلق پدې فکرکي لویدلي وي، چه پښتو هم عبري یا عربي ته ورته یعني سامي ژبه ده.

مگر وروسته چه د اروپا محقق پوهان راغلل، دا ژبه او د دې قواعد او اصول ئې په علمي معیار وکتل، نو دوي په ښکاره د پښتو د سامي توب نظریه افسانه وگڼله، او د ښښتو تعلق ئې له بني اسرائیلو سره خورا لیري وباله[3] او موږ دا خبره په تیرو مخوکي د پوهانو د اقوالو به ترڅ کي تاسي ته په ښه توگه څرگنده کړه.

د اوسني تاریخ اساس پر مشاهداتو او څرگندو دلایلو ایښول کیږي، او سړي نسي کولاي چه په تشو اقوالو په تاریخي پلټنو کي د ځان ویسا وکړي، البته که روایات او عنعنات د مشاهداتو سره مرستي سي، نو هغه تاریخي خبره خورا ټینگه وي. په اوسنیو علمي اساسو کي چه د تاریخ لپاره خورا اهمیت لري، د ژبو مقایسه او پر تله کول دي، د کومو قومو ژبي چه سره ورته وي، سړي حکم کولاي شي، چه دوي هم سره خپل او سره نژدې دي.

لکه چه تاسي دمخه ولوستل، پښتو ډیره آریائي ژبو او زند او سنسکریت ته ورته ده، له آریائي ژبو سره عنصري او اساسي گډون او اشتراک لري، سامي ژبو ته نه د قواعدو، نه د لغاتو او محاورو له خوا ورته ده، نو ځکه پوهان

آریائی پخوانو ژبو سره ورته وي، باید چه آریائي ژبي هم له سامي کورنۍ څخه وګڼو، حال دا چه دا خبره د علم او تحقیق له مقیاسه ډیره لیري ده د مثال په ډول دا کلمات دی د دلیل په توګه راوړو:

**غر، غور**

په پښتو کوه ته وائي، په عبراني ژبه (ګور) غر، او جمع ئې ګورم دي، دی وائي، چه غور هم عبري نوم دي، ابوالفدا په لومړۍ ټوک ص ۵۷ او ابن بطوطه سیاح د خپلي سفر نامې په لومړۍ جلد کي دا نوم د شام لپاره ذکر کړي دي[۱] مګر اوسني اروپائي محققین وائي چه دا دواړي کلمې پخواني آریائي دي، د اوستا به هوم یشت برخه کي ګیري د غره په معنا راغلي[۲] او هم په خورده اوستا کي کټ مټ په دغه معنا دي[۳] په سنسکریت کي هم ګیر او ګیري giri د غره معنا لري.[٤]

د غره کلمه په پښتو نومو کي خورا ډیر اثر لري، غلجي (غلزي) هم غرزي و، غور، غرچه، غرج، غلج، خلج، ټول له دغي ریښې څخه دي، چه په منځوۍ آسیا کي د آریائي قبیلو او ځایو نومونه دي، لکه چه روسي معروف مستشرق باټولد دې خبري ته تفصیل ورکوي.[٥] بل مستشرق، توماسچک Tomaschek وایي، چه ګر gar په پخوانۍ باختري ژبه د غره په معنا و او غرچه هم کوهستاني او غرني ته وایي.[٦] دا خبره د عربو جغرافیا لیکونکو هم ذکر کړیده، یاقوت حموي د البشاري په حواله لیکي، چه د غرجستان (اوسني شبرغان، تالقان، دولت آباد تر مرو او مرغاب پوري) نوم له غرج څخه جور سوي دي چه د غره معنا لري.[۷] منهاج سراج جوزجاني چه زموږ د وطن معروف مورخ دي، هم دا نوم غرستان لیکي.[۸]

ښه اوس نو سړي ویلای سي چه غر، غرچه، غلجي، ټول آریائي دي، که په عبري ژبه کي (ګور) وي، وي دي، هر شي خپل نژدې اصل ته رجع کیږي، نه لیري ته.

بل ځاي دي لیکي: چه د پښتنو نوم له عبري پشت او پاشت څخه جوړ شوي دي چه متفرق کول او پاشل معنا لري[1] حال دا چه پکهت په دغه نامه او هم دلي په دغو مځکو کي ریګویدا او یوناني مورخینو ټولو ذکر کړي دي، نو سړي نشي کولایل چه دغه خپل او نژدې نوم پرېږدي، او له سامي مځکو څخه یاشت را واخلي، او پښتو ځیني جوړه کړي.

دي بیا وایي: چه شلح پتیري ډوډي ته وایي، او عبري کلمه ده. په پښتو (ویشله) ځني جوړه سوي ده[2] حال دا چه اوسنی علم د فیلالوژي پر اصولو د کلماتو د اوښتلو او تحول ټول اصول ضبط کړي دي، خو دا چه له شلح څخه ویشله جوړه شي هیڅ فیلالوژي هسي قاعده نده راوړې، بلکه دا اصلاً ویشلې ده. په قندهارکي تر اوسه هم دغسي وایي، له پښتو مصدر ویشل (تقسیم کردن ـ حصه حصه کردن) څخه دا نوم جوړ سوي دي، دا ډوډۍ د دفعي احتیاج لپاره ژر ژر پخیږي او ویشله کیږي. یو خو هغه ډوډۍ وي، چه اوړه واغږي، یو ساعت دو ساعته ئې کښیږدي، بیا ئې نو پخوي، دا ډیر وخت غواړي. کله چه ډوډۍ ته دستي ضرورت وي نو اوړه خیشته کړي، تبخي تود کړي ژر ئې پر واچوي، چه ژر پخه سي، او د وړو خلقو په منځ کي وویشله سي، دې ته نو ویشلې وائي، کلمه هم پخپله پښتو او د پښتو پر قواعدو برابره له ویشل مصدر څخه را وتلې ده، د عبراني شلح ډیره لري ده.

دا یو څو کلمې دلته د مثال په ډول ذکر شوې او سړي دا ځني فهمولاي شي، چه د پښتو لغاتو او کلماتو نښلول، په سامي ژبو پوري کوم علمي اساس نه لري او فقط دا فکر د بني اسرائیلو او سامي کهولو له نژدي هستوګي او ګاونډي توبه څخه پښتو ته پیدا شوي دي.

## یوه ضروري یادونه

دلته باید دا خبره هم په لنډ ډول ذکر سي، چه له پخوا زمانو څخه د هند له خوا د اقوامو روابط له سامي اقوامو سره جاري وه، د سند به اوسني علاقه کي د موهنجودیرو کشفیات دا ښیي، چه شپږ زرو کاله دمخه یو مشترک مدنیت د دې ځایه تر بابل او آثوره موجود و، وروسته چه آریائي اقوام پر هند مسلط شوه نو د دوی

apat یا اپټي apati د فاجعې، بد بختي، پریشانۍ او خفت او رسواتوب په معني ده[1] په پښتو کي هم دا کلمه په دغو معناؤکټې مټ ژوندۍ ده، لکه پدې لنډیو کي:

| | |
|---|---|
| لکه شین کښت ژلیو زمول کړم | را باندي راغله له آسمانه اپټونه |
| د ویر اپټ را باندي راغي | په بیلتانه کي د زړه ویني تویومه |

ځکه چه سنسکریت ژبه پښتو ته خورا نژدې ده نو دلته موږ دا ویلاي سو، چه اپټ هم آریائي کلمه ده، پښتو او سنسکریت له عربی څخه نده اخیستې. دا یوه کلمه ما د مثال په توګه راوړه، که نو داسي کلمات ډیري دي، او تر اوسه هم په پښتو کي مستعمل دي.

نو که داسي کلمات ومومو چه اوس هم په پښتو کي وي، هم په عربي کي او په نورو آریائي ژبو لکه سنسکریت او زند کي هم وي، دلته نو موږ په ټینګه ویلاي سو، چه هغه کلمې آریائي دي او له سامي ژبو څخه ندي راغلي، بلکه ښائي چه له آریائي ژبو څخه سامي ژبو ته نقل شوي وي، او دا خبره دلیل هم نه ګرزي، دې ته چه موږ دي پښتو له سامي کهوله وبولو.

## پښتو ولي هندي یا ایراني ګڼلې شوې ده؟

تاسي دمخه ولوستل چه ځني پوهان دې ته هم تللي دي، چه پښتو د آریائي ژبو له هندي کهوله، یا د ایراني کورنۍ څخه ده، د دې راي علت هم هغه دي، لکه د سامي توب طرفدارانو چه ویلي دي دوي لیدلي دي، چه د پښتو ډیر ګرامري خاصیتونه او لغات د هندي او ایراني ژبو سره ورته دي، نو ځینو ایراني بللې، او نورو بیا هندي ګڼلې ده. مګر موږ دلته د خپلو تیرو لیکونو په رڼا کي په ټینګه وایو:

لکه ډیرو پوهانو چه هم دا خبره منلې ده، پښتو نه هندي ده او نه ایراني. بلکه له اصلي آریائي ژبي څخه مستقلاً او مستقیماً زیږیدلي ده، او لکه د اروپا اوسني پوهان چه وائي: د هندي او ایراني ژبو د اتصال حلقه هم ده. د کتاب په راتلونکو برخو کي چه پښتو د ویدا او اوستا سره پر تله سي دا خبره به په ښه ډول څرګنده سي.

# دریمه برخه

پښتو او د ویدا ژبه (سنسکریت)

د ویدا ژبه - سنسکریت - ویدا او د سنسکریت نور مشهورکتب - د ویدي ژبي او سنسکریت ژوندي کلمات په پښتوکي - د مقایسي اصول - ویدا - ریگ او ریشي - سمهیتاـ سروتي - سمرتي - سیند - سوما - چهند - اشلوک - د سنسکریت نوم - دسیو - څلور ډلي - برهمن - کشتري - ویسیا - سودر - ورڼه - من - ستهانـ نمزدک مزدا - ویا کرن - منوـ دتاله من - پیسې ـکر - اجتماعي تشکیلاتـ پتي - کولا - گرامه - ویسه - پور - سمیتي - ناچ - سامانه - ارباب انواع - ډیوس - پریتهي وي او نور ...

# پښتو او د ویدا ژبه
## یا پښتو او سنسکریت

### لومړی برخه

تاسي ته دمخه د ژبو د نوي او علمي ويش پر اساس دا خبره ښکاره شوه چه پښتو او سنسکريت نژدې اړيکي او روابط سره لري، بلکه د اوستا او سنسکريت تر منځ دغه ژبه د اتصال کړۍ هم ده، له هغه وخته چه د دنيا ژبي د مقايسوي فيلالوژي comparative philology پر علمي اساس تر پلټني او تحقيق لاندي راغلي دي نو په دغه خوا کي خورا نوي او ښه معلومات هم د بشر په لاس کښيوتلي دي - ټولي آريائي ژبي که په اروپا کي دي، که په ايشيا کي، که په شرق کي دي که په غرب کي، پر دغه علمي اساس هسي سره نښتي او نژدې ثابتي شوي دي چه پوهانو ټول له يوې ريښې او يوې آري څخه بللي دي.[1]

د پښتو اړيکي او روابط هم له سنسکريت او اوستا سره د دغي علمي پلټني پر اساس ښه څرګنديږي، او زه د کتاب په دغو برخو کي کوشش کوم چه په پر تله ئيز (مقايسوی) ډول، مفصلاً د پښتو ژبي قواعد اوګرامر او لغات او اصوات له سنسکريت سره مقابله کړم، تر دې څيړني وروسته به دا تاسي ته زباده شي چه په رښتيا هم پښتو د سنسکريت سره د خور توب روابط لري او دا دوې آريائي ژبي سره خوندي دي.

د دې مقصد لپاره چه تاسي د پښتو او سنسکريت مقايسوي اوضاع ښه وپيژني دا دواړې ژبي چه د تاريخ او بنسټ له پلوه سره نښتي دي په ښه ډول مطالعه کړاي سي نو بويه چه تر هر څه دمخه تاسي يو وار پخپله سنسکريت ژبه هم ښه وپيژني او د دغي ژبي تاريخ او پخواني ادبي آثار اوکتب ښه درته معلوم وي، دا دي چه لومړی زه دلته په دې خصوص کي څه معلومات درکوم. وروسته نو اصلي مقصد ته ځم.

په حقیقت کي د ویدا کتاب هم اوس بشپړ او ټول د پښر په لاس کي نسته ځکه ځني پخوانۍ برخي ورکي او له لاسه وتلي دي. اکثر پوهان چه پدغه کتاب کي د ژبي او د لسانو تحولاتو له پلوه کتني کړي دي دوي دا عقیده لري چه د ویدا کتاب ډیري سندري ورکي دي او دغه اوسنۍ سندري چه زموږ په لاس کي دي هم د یوه وخت ندي، دا سندري د ژبي له پلوه ډیر فرق سره لري. ځیني برخي ئې زړې او پخواني دي او ځیني برخي ئې هم نوي او زلمۍ دي، د دغه تاریخي مقصد د څرګندوني لپاره باید لږ څه شرح او تفصیل هم ولیکو.

## د ویدا بخدي سندري یا زړه او ورکه برخه

ویدا د آریائي اقوامو زړې سندري او اشعار دي چه څلور برخي لري. دغو څلورو برخو ته ئې "معلومي سندري" وائي، مګر هغه وخت چه آریائیان د هندوکش به شمال کي اوسیدل اوګښته لا نه وه را شیوه سوي دوي ځیني نوري سندري هم درلودې چه تر دغو معلومو سندرو دمخه او پخواني وې. د معلومو سندرو خورا زړه برخه ریګویدا Rig Veda ده چه پوهانو د ریګویدا له مطالعې څخه دا خبره څرګنده کړې ده چه دا سندري په یو وخت کي ندي ویلي شوي بلکه آرتهر مکدونل وائي چه د ژبي او تخیل او سبک له پلوه دغه سندري باید په څو سوه کاله کي ویلي شوي وي.[1]

ویوین دوسن مارتین هم لیکي: چه ریګویدا زاړه او نوي سرودونه لري، چه زړې سندري ئې تر نوو (٤،٥) پیړۍ دمخه دي.[2]

له دې څخه چه پخبله د ریګویدا معلومي سندري هم د یوه وخت او یوه ځاي او یوې زمانې ندي معلومیږي چه د ویدا ژبي په هره زمانه کي تحولات لیدلي دي، او د هري زمانې ژبي ځانته بیل شکل او بیله بڼه مودلې ده، او تر ریګویدا دمخه نوري سندري هم په آریائیانو کي وې. پخپله ریګویدا هم ډیر ډیر د هغو پخوانو ورکو سندرو او پخوانو شاعرانو یادونه کوي، په دې باب کي ډوټ Dutt مورخ په واضح ډول هسي لیکي: "د ریګویدا په کتاب

وروسته چه آريائي اقوام د هندوکش جنوبي ورشوګانو ته را شيوه سول نو دوي د سپين غره، ارغنداو، کنړ او سوات په غرو او دروکي ځيني سندري درلودې او بيا چه تر اباسين (اندوس) پوري وتل، د پنجاب په ورشوګانو کي دغه بدلي پسې بشپړي کړې چه د ويدا کتاب هم دغه بدلي دي او اوس ئې سمهيتا Samhita يعني مجموعه بولي او پر څلورو برخو ويشلي کيږي.[۱]

مقصد دا دي: چه تر ريګويدا دمخه هم زموږ په هيواد کي آريائي بدلي وې چه د هغو ژبه به هم غالباً هغه آريائي اصله او پخوانۍ ژبه وه، مګر دې ژبي تحول وموند، او ويدي ژبه ځني جوړه شوه، چه د ويدا دکتاب څلور برخي په دغه ژبه دي ځکه چه په ويدا کي موږ د وطن د غرو او رودو نومونه راځي، نو دا ښکاري چه د پخوانو او ورکو بدلو ژبه هم دلې ويله کيده او د معلومو سندرو ژبه يعني "ويدي ژبه" هم دلې زموږ په هيواد کي د هندوکش جنوب ته پيدا شويده.

# د معلومو سندرو ژبه يا ويدي ژبه

د ويدي ژبي ادبي آثار اوس سته او د پوهانو مفصلي پلټني پکښي شوي دي، موسيو وکرناګل Wackernagle وائي: چه آريائي ستانو او روحانيونو يوه ژبه ويله چه د صوت له پلوه له ويدي ژبي سره يوه وه فقط د شاعرانه اصطلاحاتو په نه درلودلو کي فرق ورسره درلود. دغه معلومي بدلي چه اوس زموږ په لاس کي دي، په اوښتلي شکل را رسيدلي دي. که نه وي ويدي ژبي ځانته پخوانۍ صرف او نحو درلوده او پخواني اشکال پکي وه، دغه معلومي بدلي چه زموږ څخه سته، په زمامو زمانو او پيړيو پيړيو ئې له زاړه حاله تغير کړي دي له دې جهته د BH او DH حروف يوازي په H کښل شوي، او د (ر،ل) پر ځاي (L،ل) راغلي دي.[۲] په دې ژبه کي چه

ویلیام جونس Gons د اکسفورد محقق عالم دغي خبري ته ټینګ ؤ څو چه پروفیسور رسک وروسته د اوستا د ژبي استقلال او وجود ثابت کړ.[۱]

له دې څخه هم دا خبره په ښه ډول څرګندیږي، چه د ویدي ژبي پیدایښت په هغه ځای کي و، چه اوستا پکښي پیدا شوې ده او هغه نو زموږ هیواد او د آریا مرکز دي، ویدي ژبه هم تر ډیره پر خپل حال پاته نشوه، آریائي اقوام تر انډوس (اباسین) تیر شول، د پنجاب او هند په شنو او زرغونو ورشوګانو کي سره خپاره شول، د دوي د حیات د نوي چاپیر اغیزې هم طبیعي وې، نو ځکه د دوي ژبه هم بل راز شوه، او له ویدي ژبي څخه یوه بله مهذبه او سمه کړې ژبه پیدا شوه، چه سنسکریت ئې بولي.



## سنسکریت

د سنسکریت د کلمي معنا هم مهذبه او بشپړه او سمه کړې ده[۲] د خپله نامه سره سمه دغه ژبه د ویدي ژبي له تهذیت او سمولو څخه پیدا شوه، پوهان په دې خبره کي اختلاف لري، چه آیا کوم وخت دا ژبه ویله کیده که یه؟ خو دا را ښکاره ده چه سنسکریت یوه پخوانۍ علمي او ارته ژبه ده، په زرو زرو کتابونه له پخوانو زمانو څخه دې ژبه کي پاته دي، ځکه چه د دې ژبي ادبي او علمي آثار ډیر دي او د زمانې له یرغله هم ساتلي پاته شوي دي، لغات او کلمات او قواعد ئې هم ټول شوي او لیکل شوي دي، نو د آریائي ژبو د مقایسوي فیلالوژي لپاره ډیر قیمت لري، او سړی کولای سي چه د یوې ژبي اساس د سنسکریت له مقایسې څخه معلوم کړي.

د سنسکریت نوم او د دې ژبي تهذیب او سمول نسبتاً نوي کار دي. پاڼیني Panini د اټک او د پیښور د حدودو یو معروف عالم او د ویدي ژبي پوهاند و. دې سړي هغه ویدي ژبه سره سمه او مهذنه کړه صرف او نحو ئې ترتیب کړه، نوم ئې سنسکریت یعني سمه کړې ژبه پر کښښیښو، وروسته دا نوم مشهور شو او ویدي ژبي او دغي ژبي ته ئې سنسکریت Sanskrit یعني بشپړه او سمه کړې ژبه the perfected وویله.[۳]

د پاڼیني مشهورکتاب د ده نحویات دي، چه ټول په ویدي ژبه اړه لري، او تاریخ ئې هم هغه تر مسیح دمخه څلورمه پیړي ده.[1] داکتاب هر وخت ډیر مشهور و او اته برخي ئې درلودې چه هره برخه ئې ادهیایا Adhyaya (وینا lecture) بلله او ټولکتاب اشټ ادهیایا Asht Adhyaya یعني اته ویناوي نومیدي. داکتاب په خپل عصر کي ډیر مهم دي او په نورو ژبو او قوموکي ساري نلري، بلکه سړي ئې د ژبي په علمي تحلیل او تجزیه کي لومړي کتاب ګڼلاي سي. داسي ښکاري چه تر پاڼیني دمخه هم بعضو پوهانو د سنسکریت ګرامرکښلي و، ځکه دي پخپل کتاب کي تقریباً څلور شپیته (٦٤) تنه خپل اسلاف ښیي چه ډیر تر ده دمخه ئې په دي کارګوتي پوري کړي وې مثلاً دي ساکاټاینه Sakatayana او یاسکه Yaska نومونه اخلي، چه دا یاسکه د پاڼیني سلف او د نیروکته یعني صرف مولف و، او ده د سنسکریت په ګرامرکي دا اساس څرګندکړ، چه ټول نومونه (اسماء) له کړو (افعالو) څخه را وتلي دي.

تر پاڼیني وروسته نور پوهان هم د ده دکتاب په شرح مشغول شول، مثلاً یو عالم کاتایانه Katayana نومیده چه د ده یادداشتونه او تنقیدي شرح وارتیکه Vartika نومیږي اوس هم دا کتاب سته، بل مشهور شارح ئې پاتینجلي Patanjali نومیږي چه په ۱۵۰ق،م ئې د پاڼیني لویه شرح لیکلي، او مهابهاشیه Mha Bhashya نومیږي، او په دغه کي دکلاسیکي سنسکریت تاریخي او تنقیدي پلټني سته، او د پاڼیني له ٤۰۰۰ قاعدو څخه ئې ۱۷۱۳ قاعدې په تنقیدي ډول شرح کړي دي، دی ګوناردیا Gonardiya بلل کیږي، یعني دګونارده Gonarda اوسیدونکي چه دا ښار شل میله د اودهـ شمال غربي خوا ته واقع و.

سنسکریت د لغاتوکتب او قوامیس lexicography هم لري، او دغه کتب په نظم وه لومړي مشهورکتاب امره سیمه Amarasimha نومي عالم به شپږمه میلادي پیړي کي د امره کوشه Amra-Kosa یعني (نه نا بودیدونکي خزانه) immortal treasury په نامه کښلي دي.[2] د سنسکریت کتب او علوم په اسلامي دوره کي هم مشهور وه، مثلاً ابو ریحان البیروني د ٤٢۰ هجري به شا و خوا کي د هند د نحوي په کتابو کي پانیریتي (پانیرت) Panirit

د سنسکریت خورا زړه کتیبه چه تر اوسه د بشر لاس ته رسیدلې ده په ۱۵۰ع کال اړه لري مگر په څلورمه عیسوي پیړۍ کي دا ژبه عامه سوه، او په ټولو کتیبو او رسمي نوشتو کي اسعمالیده، او ډیري نوشتې او ډیر لیکونه له دغه عصره پاته دي، او وروسته دا ژبه ډیره ادبي او علمي سوه، فلسفي، عشقي، طبي، او نور ډول ډول کتب پکي ولیکل سوه او ښې ښې ډرامې هم لري، د سنسکریت ادبي تاریخ پر دوو برخو ویشل کیږي لومړۍ برخه ئې ویدي ده، دوهمه د کلاسیکي ادب دوره ده، او دواړي د ځینو مهمو ممیزاتو او سبک له رویه سره بیلي دي لومړۍ دوره له ۱۵۰۰ تر ۲۰۰۰ ق،م ده او دوهمه دوره له ۵۰۰ تر ۱۰۰۰م پوري را رسیږي، ویدي دوره عبارت له هغه سمهیتا (مجموعو) څخه ده، چه څلور ویده پکي شامل دي، او نور ملحقات ئې هم په دغه دوره اړه لري. مگر سترا Sutra شرح ئې د ویدي ادب او کلاسیکي دورې د اتصال حلقه ده وروسته په کلاسیکي دوره کي د حماسیاتو اشعار epics لکه مهابهارت، او راماین شامل دي، پوران Puranas او رومانسي او قصصي کتب هم په دغه دوره کي سته، فلسفي، قانوني، طبي او تکنیکي کتب هم لري، چه له دغو څخه د منو Manu قوانین ډیر مشهور دي.[1]

سنسکریت فقط د علم ژبه وه او اکثر پوهان په دې فکر دي چه دا ژبه عموماً نه ویله کیده ځکه چه د عمومي وینا ژبه باید ډیره اسانه او ساده وي، مگر سنسکریت هسي د علم په درنو انډیو بار ده، چه عوام ئې کورټ نسي زده کولاي او تاریخ هم دا نه ښکاره کوي، چه یو وخت دا ژبه د عوامو ژبه وه، پخپله د هند برهمنان وایي چه یو وخت دا ژبه د هند په شمالي خواو کي ویله کیده، خو وروسته د دې ژبي نوري څانگي پراکریت Prakrit یعني فرعي ژبي پر غالبي شوې، او دا فقط د علم لپاره مخصوصه شوه[2] او هم د پوهانو او دیني خلقو په منځ کي محصوره پاته شوه، او لکه چه پوهان وائي د دې ژبي پوهانو د مقدس والي له جهته نه غوښته چه عوام او هر څوک دا ژبه زده کړي یا ئې واوري نو ځکه د کتابو او پاڼو په منځ کي ژوندۍ وه خو ویله کیده نه.

## ویدا او د سنسکریت نور مشهور ادبي او دیني کتب

اکثر پوهان دا عقیده لري چه د ویدا کلمه د (ود) له مصدره جوړه شوې، او د پوهني په معنا ده، ودیا په عمومي ډول علم ته وائي[۱] ماکس میولر مشهور وید پوهان دغه عقیده لري او وروسته ئې گریفت او ماکدونل هم تائید کوي چه د وید معنا پوهنه، علم، دانش دي او ښائي چه دغه کلمه لومړۍ کلمه وي، چه له آریائي ژبي څخه پاته وي.[۲]

په لوي سرکي ټولي آریائي بدلي او اړې سندري پر دوه ډوله ویشلي کیږي:

لمړۍ برخه سروتي Cruti یا شروتي بولي چه معنا ئې "ارویدل شوي او الهامي" دي[۳] او دا ټول سرودونه د هغو خلقو په عقیده الهامي وه چه "مقدسي سندري" ئې گڼلي. دوهمه برخه ئې سمرتي Smriti بولي، یعني روایي او یو له بله نقل شوي یا په یاد شوي سندري چه دوي به مقدس روایات او عنعنات گڼل. مگر د الهام کیفیت ئې نه درلود.[٤] په لومړي برخه یعني سروتي کي ټول ویدونه Vedas داخل دي او دوهمه برخه د ویدو شروح او ضمیمې او تفاصیل دي چه ټول پر اصلي ویدو باندي بنا سوي دي، ویدونه څلور دي او دغو څلورو ته سمهیتا Samhita یعني مجموعه هم وائي په دې تفصیل:

۱- ریگویدا Rig Veda چه دا یو قسم منظومي بدلي او سندري وې او ټولي ۱۰۲۸ سندري کیږي[٥] چه هره سندره بهجن بولي او دا ټولي سندري پر سلو برخو منډلا Mandala شاملي دي. هره برخه ئې یو منډلا (دائره) بولي. د وید معنا مو دمخه زده کړه. ریگ له rich څخه را وتلې کلمه ده چه معنا ئې تمجید او ستاینه او ثنا ده. نو ریگ ویدي د ستاینې او ثنا او صفت د علم معني کوي. وائي چه آریائیانو یوه ډله شعراء درلودل چه دوي ته ئې ریشي Richi ویل[٦] او دا سندري هغو ته منسوبي دي. ځیني خلق ریگویدا پر اتو برخو Ashtata ویشي او هره برخه بیا پر اتو نورو ټوکو ویشي چه هر ټوک ئې ادهیا Adhya بولي. هره ادهیا دیرش فصله ده چه "درگا" ئې بولي او هر فصل پنځه ویناوي (فقرې) دي د مضمون له پلوه ریگویدا ټول د ارباب انواعو ستاینې او مذهبي دعاوي دي.

ښکاري چه ریګویدا ټول ۱۵۳،۸۲٦ الفاظ او ٤۳۲،۷۰۰ حروف درلودل، ټولي جملې ئې په یوه حساب ۱۰٤۰۲ او په بل حساب ۱۰٦۲۲ وې.[۱]

علامه البیروني لیکي چه بید (ویدا) یو ډول نظم دي، چه خلق ئې معجز او الهامي ګڼي، او یو مشهور عالم بیا پر څلورو برخو وویشه: لومړۍ برخه چه رګ بید ده د نظم یو مخصوص ډول دي چه رج rij=رګ rig ئې بولي. بیذ یعني د هغو شیانو پوهنه چه معلوم ندي، په دې کتاب کي اوامر او نواهي، ترغیب او ترهیب، د قربانۍ او تسبیح چمونه ذکر شوي دي، لومړۍ پلا د بیذ لیکل منع وه، مګر وروسته دغه موجوده بیذ بیاس د پراشر زوي ترتیب کړ، او موږ ته پدې نزري زمانه کي یوه کشمیري عالم بسکر Buskar بیذ وکیښ او د دغه کتاب یو تفسیر ئې هم مرتب کړ.[۲]

۲- دوهم وید ساما ویدا Sama Veda دي، چه د ماکډونل په قول له سامن Saman یعني آهنګ او نوا څخه ئې نوم را وتلي، او دا کتاب د ریګوا له سندرو څخه جوړ شوي او عموماً هغه بدلي دي چه د قرباني پر وختو باندي ویلي کیدې او د مارکس میولر په قول د ریګویدا موید مضامین پکښي دي، دا سندري ټولي په لوړ ږغ ویلي کیدې او شمیر ئې ۱٥٤۹ دي، چه بیله ۷۸ سندرو نوري ټولي له ریګویدا څخه را اخستلې شوي دي.[۳]

۳- یجور وید Yajur Veda دریمه برخه ده چه د قربانۍ دعاوي او مراسم پکښي ذکر شویدي. دې وید هم له ریګویدا څخه تقریباً نیمي سندري را اخستي دي. ماکډونل وایي چه دا نوم له یاجوس Yajus څخه جوړ شوي دي چه معنا ئې قرباني ده، په دې کتاب کي ځني منثوري جملې هم راغلي دي او دوې برخي لري؛ ترویجر (کرشنا) Karishna چه اتریا سمهیتا ئې بولي یعني د ته اتریا Taittiriya ریشي مجموعه. بل سپین یجر (سکلا) چه یاجن ولکیا Yajanavalkya سمهیتا ئي بولي یعي د یاجن ولکیا ریښي مجموعه.[٤]

تبصره: دغه دري ویدونه چه لوړ ذکر شول، ترائي ویدیا Trayi Vidya یعني دري پوهني او دري علمونه ئې هم بولي.

نثر ده.[۱] اتهروا ویدا پر شل برخي ویشلي دي، چه هره برخه ئې کانډا Kanda بولي او دغه ټول ۷٦۰ سندري او تقریباً شپږ زره سروده کیږي.[۲]

سمرتي یا د ویدو ملحقات: پخپله د ویدو سندري او سرودونه بیلي دي، چه هغو ته منتر یا گیت وائي او دغه برخي الهامي بللي شوي دي، مگر ځني نور شروح او ملحقات هم لري چه نثر دي او په دغو کي ځني مذهبي هدایات لیکل شوي، او ظاهراً تر پخپله وید وروسته دي چه د ژوندانه چاري او ځني فلسفي افکار هم پکي بیان شوي دي. دغو ملحقاتو ته برهمنا Brahmana وایي او دوې نوري برخي هم لري چه آرانیاکا Aranyaka او یوپانیشاد Upanishad ئې بولي. د لومړي معنا ده د ځنگله تفکرات او د دوهم معنا ده پټ الهامات، دغه ملحقات هم د ژبي هم د مضمون له پلوه دویدو په شرح او هم د آریائي اقوامو د فکر او فلسفې لامله ډیر اهمیت لري.[۳]

دغو ټولو ملحقاتو ته چه په ویدو اړه لري، سمرتي وائي او دا هغه روایات دي چه تر ویدو وروسته پیدا شوي، او د شرح او تفسیر په ډول لیکل شویدي، سمرتي چه د مضامینو له پلوه په غور وکتل سي، دغه لاندي مقصدونه پکښي پیدا کیږي، چه اصطلاحاً ئې ویدانگه Vedanga بولي، او دغه لاندي شپږ دي:

۱- سکشا Siksha د صوتیاتو او تلفظ او لهجې بحث phonetics چه کوچنۍ کوچنۍ څیړني دي او معروف گرامري عالم پاڼیني ته ئې نسبت کیږي او د پاڼینیا سکاشا Paniniya Siksha په نامه یادیږي او د دویدو د صوتیاتو او تلفظ لپاره ډیر اهمیت لري.

۲- چهند یعني د اشعارو عروض او معیار چه پنگل Pingale نومي عالم د چهندا سترا Chhandah Sutra په عنوان لیکلي، او د عروضو prosody ابحاث لري، پخپله د ویدا په ساماویدا برخه کي هم د عروضو لړ شرح په دوو برخو کي سته.

۳- ویاکرن vyakarana یعني گرامر او نحو، چه د پاڼیني مشهور گرامر د ویدي ژبي اکثر قواعد بیانوي او له

٦- کلپه kalpa یعني رسوم او آئین او دودونه او جالونه ceremonial په دغه خصوص کي ډیر ابحاث د سترا sutra برخي لري او د قوانینو کتابونه هم ټول په دغه ډله کي دي، دغه شپږ مضمونه دي، چه د سمرتي په برخو کي موندلي کیږي مگر ټول دغه مضامین متفرق او پاشلي دي، داسي ندي چه مثلاً یو کتاب یا یوه یوه برخه ورته ټاکلي شوې او یو یو مضمون پکښي لیکلي شویدي، بلکه که ټول د ویدا ملحقات وکتل سي، د دغوشپږو علومو بیان لري.[١]

## د دویدي ادب زماني او خلاصه

پوهان دغو ټولو آثارو ته چه دمخه ذکر کړل شوه ویدي ادب وائي او په دې لاندي ډول ئې خلاصه کوي:

١- د چهند Chhandas زمانه یعني د زاړه ریگویدا عصر له ١٢٠٠ ق،م تر ١٠٠٠ق،م

٢- د منترو Mantras زمانه یعني د نوي ریگویدا عصر له ١٠٠٠ ق،م تر ٨٠٠ق،م

٣- د برهمنا Brahmanas زمانه یعني د تفسیر او ملحقاتو عصر له ٨٠٠ق،م تر ٦٠٠ق،م

٤- د سوترا Sutras زمانه یعني د کوچنیو مذهبي رسالو عصر له ٦٠٠ ق،م تر ٢٠٠ ق،م

د ویدي ادب په دغه ویشنه کي ماکس میولر په ښه ډول د دغه ادب مختلفي دورې را ښئي،[٢] مگر د کلو په تعین کي اختلاف دي او لکه دمخه چه موږ وښوله د ویدي ادب عصر باید تر ١٥٠٠ ق،م پوري ورسیږي، اکثر پوهان لکه ولسن، بارتهه، هاگ هم د دغي خبري پر خوا دي، او هاگ وائي چه د ویدي ادب د خورا پخوانو سندرو عمر تر ٢٤٠٠ ق،م پوري هم رسیږي.[٣]

## نور کتب

(۲) رامایانا: بله مشهوره قصه رامایانا Ramayana ده چه دا هم د سنسکریت له مشهورو ادبي کتابو څخه ګڼل کیږي، د هنتر به قول زرکاله تر مسیح دمخه دا قصه واقع شویده، او بالمیک نومي عالم ته دا کتاب منسوب دي، ټول ۲٤۰۰۰ اشلوک او ٤۸۰۰۰ بیتونه دي.[1]

علاوه پر دغه نور ډیر کتب هم سته چه مشهور دي لکه: پران، شکنتلا، هتو پدیش او نور چه د لنډوني لپاره ئې فقط نومونه یاد شول. اوس چه تاسي ته د ویدي ادب او سنسکریت د آثارو او کتابو یو لنډ لنډ معلومات وړاندي شول، نو څم خپل اصلي مقصد ته چه د ویدي ژبي او سنسکریت پر تله او مقایسه ده، له پښتو سره.

## د ویدي ژبي او سنسکریت لغات چه په پښتوکي اوس هم ژوندي او مستعمل دي

پدې کتاب کي زه د ویدي ژبي سره د پښتو پر تله فقط د لغاتو اوکلماتو د نژدیوالي له پلوه بحث کوم، او دا ښکاره کوم چه د ریښې او بنسټ له مخي د دواړو ژبوکلمات ډیر سره ورته او نژدې دي، او د ویدي ژبي هغه زاړه لغتونه تر اوسه هم په پښتوکي ژوندي او مستعمل دي، د ویدي ژبي ادبي آثار اوکتب خوشبختانه پاته دي، او اوس موږ استفاده څني کولاي سو، مګر د پښتوکوم لیک او زړه نسخه په لاس کي نلرو، نو څکه د ویدي ژبي د نژدې والي لامله د پښتو اصالت او قدامت معلوموو، دغه مقایسوي څیړنه د فیلالوژي او فقه اللغه تر اصولو لاندي ده مګر وروسته چه د پښتو او سنسکریت مقایسه شروع سي دلته به په دوه ډوله پلټنه او څیړنه کوو، لومړي به د سنسکریت کلمات په لوړ ډول د پښتو سره تطبیق کوو وروسته به د دې ژبي څني اساسي قواعد او صرفي اصول هم له پښتو سره پر تله سي، په دې ډول به له ویدي ژبي او سنسکریت سره د پښتو قرابت په ښه څیر څرګند سي.

## د پرتله کولو او مقایسي اصول

۳- د حورفو اوښتنه او یو له بله تبدیل چه د کلماتو تحول هم له دغو اصولو څخه زده کیږي او دا هم په اکثرو ژبو کي مثبت اساسونه لري morphology

٤- لغات او کلمات، چه څنګه جوړ شوي دي؟ جامد کلمات ئې څنګه دي؟ مصادر او مشتقات ئې څنګه دي؟ vocabulary [1]

پر دغو څلورو موادو برابر د ژبو پرتله او مقايسه کيږي، او په دې کتاب کي زما د پلټني او څيړني آره دغه څلور خبري دي، د ږغو او توريو او لغاتو او کلماتو شرح او تفصيل او پرتله به وروسته راوړم، دلته به لومړي د دريم خبري يعني د حروفو د اوښتلو او يو له بله د تبديل څني اساسي خبري در وښيم، چه اوس دستي دغه مواد زموږ لپاره د ويدي ژبي په مقايسه کي په کار راځي.

## توري او د اوښتلو اصول ئې

ژبه عبارت له هغو ږغو او آوازو څخه ده، چه تر خوله راوزي. دا ږغونه راز راز دي او هر ږغ ځانته په خوله کي يو ځاي لري، چه له هغه ځايه هغه مخصوص ږغ راوزي، دغه ځاي وتوځي (مخرج) بولي، ټول ږغونه له خولې څخه راوزي، له شونډو څخه نيولي بيا د ستوني تر پايه يعني سينې پوري د حروفو مخارج دي، ځيني توري په شونډو کي ويل کيږي لکه (ب، م) ځيني توري د خولې له منځه راوزي لکه (ج، ل) ځيني حروف حلقي دي، لکه (غ، خ) ځيني حروف په سينه کي ويل کيږي لکه (هـ، ا).

د دنيا د ټولو ژبو ږغونه او آوازونه يعني توري تر سلو پوري رسيږي او هره ژبه ځانته څني داسي ږغونه هم لري چه هغه په نورو ژبو کي نه وي، مثلاً د عربي ژبه نه مخصوص حروف لري (ث،ح،ذ،ص،ض،ط،ظ،ف،ق) چه په پښتو او پاړسو کي نسته او د پښتو او آريائي ژبو ځيني حروف لکه (پ،ټ،ډ،ړ،ژ،ږ،ښ،ڼ) بيا په عربي او سامي ژبو کي نه راځي، عموماً د ټولو ژبو توري چه له شونډو څخه ستوني تر پايه ادا کيږي په لاندي ډول شو

١ لومړي پلا د یوه مخرج حروف سره اوړي.

٢- دوهمه پلا ښائي چه هغه حروف سره واوړي چه مخارج ئې سره نژدې وي.

٣- کله کله داسي هم پیښیږي چه یو توري په داسي بل توري تبدیل شي چه په مخرج کي ډېر له اصله لیري وي دا نو داسي کیږي چه یو حرف لومړۍ پلا په داسي بل حرف واوړي چه په مخرج کي ور نژدې وي وروسته بیا دغه مبدل صورت په بل داسي حرف ابدال شي چه دغه دوهم صورت ته نژدې وي، دې ته ابدال بالواسطه باید ووایو.

٤- حروف صحیح یا صامت توري consonants په اوښتلو کي تر لوړو درو قاعدو لاندي دي مگر حروف علت یا صایت یعني ږغیږي توري vowels چه هر وخت صامتو توریو ته حرکات ورکوي، او د دوي په کومک د صامتو توریو تلفظ کیږي، د ابدال پر وخت کم قیمت نلري، کله له منځه ځي، کله اوړي، کله زیاتي کیږي. ږغیږ توري دا دي (چه ساکن وي) الف a، و v، یy، هـ (حرکي) h، آي i، یو u، او o، ائې e.

دا حروف ذاتاً اصالت نلري، د نورو د حرکت ښکاره کولو لپاره دي، اصلاً د دوي تشکیل هم د یوه ږغ له درنولو او سپکولو څخه دي، دا لاندي نقشه وگوري:



يو مثال: د ابدال د دغو قاعدو د څرګندولو لپاره دا يو مثال دلته راوړل کيږي (اشو) ashva په سنسکريت کي آس ته وايي، په اوستا کي اسپه aspa سو، په پاړسو اسپ asp او په پښتو نر آس او ښځه ئې اسپه ده. وګورئ د سنسکريت (ش) تالوئيز توري دي په (س) بل تالوئيز توري اوړي، نو (اش) طبعاً (اس) کيږي، واو شونډيز توري دي، پ هم له شونډو څخه را وزي، نو وva= پ pa شو اسپ او اسپه ځيني جوړ شول.

په پښتو کي (واو) د علت لامله حذف شو آس پاته شو. تر څلورو لوړو قاعدو لاندي د حروفو د ابدال لنډه نقشه دا ده:

| هـ - ا | ح - هـ | رـ ل | ع ـ ا |
|---|---|---|---|
| س،خ، که | ت، ټ،ط | م،ن،ڼ | ق،ک |
| ب،پ،و،ف | د،ډ | ن،ل | ن،ڼ |
| ګ، غ | ذ،ز | ږ،ژ،ج،ځ | و،ا |
| س،ش | ص،س | څ،س،چ،ش | ی،ج |
| هـ،س | ض،د | د،ل،ت | ت،ث |

**ويدا Veda**

تر ټولو دمخه بايد د ويدا کلمه تر غور لاندي راولو څکه د اکثرو پوهانو په عقيده دا کلمه له پخوانۍ اصلي آريائي ژبي څخه ده، او دوي وائي چه د دې کلمې اصل (ود) دي چه د پوهني معنا لري.[1]

په سنسکريت کي د ډيرو کلماتو ريښه هم دغه کمله ده، او ډول ډول الفاظ ځني جوړ شويدي، مثلاً ودت vidit

مقصد ته نژدې دي، او سړی ویلای سي چه له اصلي آريائي ژبي څخه دا کلمه سنسکريت ته په لږ معنوي تحول راغلې ده، اصل ئې په پښتو کي محفوظ دي، يا دا چه د پښتو معاني ئې لږ څه مغيري شوې دي، په دې ډول:

په پښتو کي وده vadah د واو په زور او د دال په زورکي تر اوسه د نشو و نما او لويوالي په معناؤ مستعمله ده، په قندهارکي وايي: دا تاک په دې مځکه کي وده نه کوې يعني نه لوئيږي او نشو و نما نه کوي، له دغه ريښې څخه واده vadah جوړ شويدي، چه په واده کي هم وده يعني نشو نما او تکاثر پټ پروت دي، انسانان په واده سره نشو نما او ډيربښت کوي، له دغي کلمې څخه وديدل لازمي مصدر، ودوي متعدي مصدر، او ودون، ودونه، وديده، وديدنه ودينگ جوړ شوي دي.

وده يعني لويښت او نشو نما له پوهني سره لازمي شي دي، وده بې پوهي نه کيږي او هر ځاي چه پوهنه، او علم موجود وي، هلته وده هم سته، دا معنوي تلازم دغه دوه کلمې ښه سره نژدې کوي، نو هغه کلمه چه د (ويدا) نوم ځني مشتق دي، کټ مټ په پښتو کي (وده) ده، د دې معنوي تطبيق او تلازم د څرگندوني لپاره دا لانديني لغوي پلټنه هم د ويلو وړ ده.

د ويدا کلمه چه په اصل کي (ويد) ده، د دال په زور، په اسلامي دوره کي بيد beed ضبط شويده، (واو) او (ب) دواړه شونډيز توري دي، او ابدال ئې هم خورا ډير دي: مثلاً پښتو وري پاړسو بره. پښتو وان van پاړسو سوبان، لکه باغوان او باغبان.

نو ويد، بيد او په پخواني اصطلاح بيذ هم شو[1] چه په پښتو کي له دغي ريښې څخه تر اوسه هم بد bud سته، مثلاً پلاني ډير بد سړی دي يعني هوښيار، عاقل، دانشمند دي، دا کلمه وروسته به بودائي عصرکي هم کټ مټ د دغه بدهـ په نامه کي موجوده وه، او علامه البيروني ليکي چه د هندوانو په عقيده مادهٔ مطلق او مجرده هيولا (ابيکټ) درې شيه بالقوه له ځانه سره لري: عقل، دين، جهل. او لومړۍ يعني عقل ته (بدهه) وايي، چه د راحت او خوښۍ او هوسائي باعث دي.[2]

دغو ټولو څخه دا ښکاري چه (بذ) د پاړسوانانو په اصطلاح تر اسلام دمخه د رئیس او حافظ، مهتر معانی درلودل، چه د بودائي بدهـ او د پښتو اوسني بد سره ډیره اړه او نژدې والي لري.

په پښتو کي یو بل مصدر هم سته، بودول budawal یعني ځیني اخستل او تحصیل او لاسته راوستل، مثلاً خپلي پیسې مي ځیني بود کړې یعني لاس ته مي راوستې او تحصیل مي کړې. ښائي چه دا هم یو معنوي تحول وي له دغي ریښې څخه، دغسي هم ویل کیږي. چه دا شي د بود دي، یعني دګټې او نفعي دي.

له دغو لوړو تاریخي او لغوي پلټونو څخه نو دا نتیجه لاس ته راځي، چه د پښتو (وده) او بیا (بد) په هغه پخواني (ود) او (وید) او (بید) اړه لري او د دغو کلماتو ریښه پخوانۍ آریائي ده، او په پښتو کي هم تر اوسته له دغي ریښې څخه ډیري کلمې ژوندۍ دي، او دا ثابتوي چه د آریائي پخوانۍ ژبي سره اوسنۍ پښتو څنګه ټینګه رابطه او اړه لري؟

### ریګ او رشي Rig-Rishi

د وید شرح او تطبیق مو لوړ ولوست، او دا هم در معلومه ده چه ریګ ویدا Rig Veda د وید دکتاب مهمه او لومړۍ برخه ده اوس به راسو دې ته چه د رګ rig کلمه څه معني لري او په پښتو کي ریښه سته که یه؟

لکه دمخه چه هم ویل شویدي، د رګ ماده rich ده چه د البیروني په قول د رج rij مجموعه ده، او رج یو ډول نظم و چه د قربانیو پر وخت په درې ډوله ویل کیدي، لومړۍ په ساده ډول، دوهم داسي چه پر هر لفظ باندي دریږي، دریم ډول چه تر ټولو ښه دي، جمله جمله ویل کیدي، او دمخه جمله بیرته ور سره تکراریده بیا نو بله جمله ور سره یو ځاي کیده.[1]

اوسني پوهان وایي چه رګ د ستاینې او حمد و ثنا معناوي لري، او دا کلمه په سنسکریت کي هم په دغه معنا ده، مګر که موږ دقیق سو داسي تحلیل کیږي:

روحاني مقام درلود، او د ویدو برخي هم دغو ریشي ګانو ته منسوبي دي، مثلاً یوه برخه د یوه ریشي په نامه ده، او بله د بل. او هندوان دا عقیده لري، چه دغو ریشي ګانو ته د ویدو د مضامینو الهام کیدئ، او د دغو روحانینو له ارباب انواعو سره ټینګه رابطه درلوده. په ویدوکي د ډیرو ریشوګانو نومونه هم راغلي دي، او داسي ښکاري چه هر قوم به ځانته ریشي درلود[1] او هر ریشي د خپل قوم رهنما، روحاني، شاعر، خطیب بلل کیدي، او هر وخت به ئې خپل قوم ته د قربانیو او عباداتو د وختو دعاوي او سندري نظم کولې. د حمد او ثنا مضامین به ئې په شعرکي ویل، دا سندري او دعاوي چه سره ټولي شوې، نو د ویدا کتاب ځیني ترتیب شو، او هره برخه ئې د هغه ریشي په نامه وبلله شوه، چه هغه دغه سندري او دعاوي نظم کړي وې، یا دا چه د آریائیانو په عقیده ده ته ئې الهام شوي ۏ. نو ریشي هغه رج rij یا رګ ته منسوب دي چه معنا ئې ده ستایونکي، ثناګوي، شاعر د ښو اخلاقو څښتن. نو ریګ ویدا، رج ویدا داګرده له یوې ریښې څخه را وتلي شیان دي، او معنا ئې ده د ستاینې، د حمد او ثنا او د ښو اخلاقو او سموالي پوهنه.[2]

اوس به نو راسو پښتو ته: زموږ په ژبه کي داسي کلمې سته چه تر اوسه هم ژوندۍ دي، او د دغې کلمي سره ښکاره خپلوي لري: لومړۍ کلمه ده "رشه" یعني خلق او ارثي سجیه مثلاً وایي: دغه ئې د پلار او نیکه رشه ده، یعني د پلار او نیکه خلق او سجیه ئې دغه ده؛ دوهمه کلمه "رشا" ده، دا د هغه چا صفت کیداي شي چه قولاً او عملاً معتمد وي، او ویسا پرکیداي شي، مثلاً زلمي خان ډیر ریشا سړی دي یعني معتمد مطلق دي، او د ښه خلق خاوند دي، په دې ډول له ریشي څخه ریشا یو صفت جوړ شوی دي، دریمه کلمه "وراشه" ده چه د خبري او وینا معنا لري، وراشه ئې نده زده، د هغه چا حال بیانوي، چه نه ژبه لري، نه وینا. حمید مومند وائي:

خندا وه په عاشقۍ راپوري خلق      چه خندل مي د پندګویو په ورشو

معلومیږي چه نامعقولي او بدي خبري ته وراشه نه وایي بلکه ښیې وینا او دګتي خبري ته وراشه ویله کیږي په دې ډول سړي ویلاي سي چه د ریشي آریائي کلمه له پښتو رشه، رشا، وراشه سره ډیر نژدیوالي او خپلوي لري،

### سمهيتا Samhita

پوهانو د دې کلمې معنا مجموعه collection راوړې ده، پخپله د ويدا څلور کتابونه چه دمخه ذکر شول، د مقدس علم څلور مجموعې ګڼل شوي دي او هره يوه سمهيتا بلله کيږي[1] مثلاً ريګويدا سمهيتا، ساما ويدا سمهيتا او نور، الماني مستشرق ونټرنيټس M. Winternits اصلاً ويدي ادب پر درو برخو ويشي. يوه مهمه او لومړني برخه ئې سمهيتا بولي، چه ټول د ويدو متون پکي داخل دي[2] په پښتوکي تر اوسه دغه کلمه کټ مټ نژدې دغي معنا ته سته سمته samatah يعني مجموع او ټول اوکافي او په ښه اندازه: مثلاً وني ښه سمته ميوه کړيده يا ډوډۍ ئې وخوړه، خو ښه سمته څني پاته سوه، پلاني ډيري پيسې لري، خو سمته ئې څلويښت زره کيږي.

نو دغه د پښتو سمته کټ مټ د ويدي ژبې سمهيتا دی (ی) او (الف) چه حروف علت دي هر وخت حذفيږي، يا زياتې کيږي، يا د حرکاتو کار ورکوي. په دې لنډۍ کي دا تاريخي کلمه ساتلې شويده:

د غم د برخو په ويش راغلم سمت سمت غمونه زما په برخه شونه

يعني کافي او مجموعه غمونه د برخو په ويش کي زما حصه شوه.

### شرتي، سروتي Cruti

دمخه مو وويل چه د ويدي سندرو يوه برخه يعني متون او څلور سمهيتا، سروتي يا شرتي بولي، او دا عقيده لري چه دغه سندري الهامي وې.[3]

دا پخواني کلمې هم د پښتو پر اصولو تحليل کيداي سي، د (س،ش،ښ) ابدال يو طبيعي کار دي، سرتي، سروتي د يوې کلمې انواع او مختلف صور دي، په شرتي کي واو تخفيافاً حذف شوي دي، دا کلمه د پښتو (ښه

### سمرتي Smriti

د دې کلمې شرح هم دمخه تيره شوه، د ويدو هغه برخې چه الهامي ندي، سمرتي بولي. دا هغه د ويد ملحقات او شروح دي، چه د روايت او تحديث په ډول يو له بله نقل شوي، او مغنن راغلي دي. د دې کلمې اصل غالباً له دغه پښتو شمير، او پاړسو شمار، شمردن سره شريک دي. په پښتو وايي شميرلي يا شمرلي چه په پاړسو کي شمرده دئ.

د س،ش ابدال عمومي دي ت، ل دواړه د نژدې مخرج حروف دي. ابدال ئې روا دي، او ښائي چه دلته بالواسطه وي، يعني شميرلي لومړي وار سمردی او بيا دال په (ت) بدل شوي وي سمرتي.

د مثال په ډول دا کلمې وګوري د لام او دال ابدال سل=سد، لس=دس، (ده هندي) ليونی=ديوانه، بيا نو (د) ابدال په (ت) لکه زياد=زيات، آباد=آبات، شهد=شات.

### سيند Sind

دا کلمه هم ډيره تاريخي ده، او بيخي زړه، په ريګويدا کي، سپته سندهو Sapta Sindhu مکرراً راځي، يعني اوه روده چه دغه نوم په اوستا کي کټ مټ دغسي هپته هندو Hapta Hindu ذکر کيږي په دې علاقه کي چه اوه روده بهيده، يوه حصه ئې اوسني پنجاب دي، چه پنځه روده پکي بهيږي.[1]

دغسي هم سندهو په ويدي سندرو کي صرف د رود په معنا هم دي، ځکه چه هر وخت د اوستا په ژبه کي د ويدي ژبي (س) په (هـ) تبديل کيږي، نو د هند نوم هم له سيندهو څخه جوړ شوی دي.[2]

پخوانو آريائيانو د انډوس رود هم سندهو باله، او مطلق هر رود ئې هم په دغه نامه باله. او داسي معلوميږي چه دوي په لوی درياب (بحر) خبر نه وه دا کلمه ئې پر هر رود اطلاق کوله.[3]

په اتهروا ويدا کي هم دا کلمه په دغو دواړو معناو راغلې ده، کله مطلق رود ته وائي، او کله انډوس Indus ته

دا نوم په ویدي اصطلاح (سندهو) په پښتو کي تر اوسه هم مستعمل او ژوندی دي (سیند) یا یې مخفف (سین) دواړه اوس په هغو دواړو معناو چه په ویدا کي وې مستعمل دي مثلاً په عمومي معنا د کابل سیند، د کنړ سیند ویل کیږي، او په مخصوصه معنا (سیند) یا (اباسین) انډوس ته ویل کیږي، خوشحال خان وایي:

که مو یو ځل رسد وسي تر سنده بیا دي نه وینم په تورو ستروګو هنده

دلته مقصد فقط انډوس دي یا لکه دا لنډۍ:

اباسین بیا په ځپو راغي په سر ئې راوړه سپیني خولې ژړ پیزوانونه

یا په عمومي معنا، لکه د خوشحال خان دا بیت:

که ئې درست په سیند کي ډوب کړې هم به سیځې چه سیځل ئې په نصیب شوله روزګاره

په دې ډول سیند او سین د پښتو مستعمل او ژوندي لغت دي، چه په ویدي ژبه کي هم ؤ او ښائي چه له اصلي آریائي ژبي څخه دواړو ژبو ته راغلي وي.

### سوما، هوما Soma, Haoma

دا د یوه بوټي نوم دي، چه په ویدي ژبه ئې سوما بولي، اما لکه په اوستا کي چه د ویدي ژبي (س) په (هـ) ابدال کیږي، نو په اوستا کي هوما راغلی دي. دا بوټي هغه وخت آریائیانو مقدس ګاڼه، چه دوي لا په بخدي کي سره یو ځاي وه، او پر هند او ایراني ځانګو نه وه ویشل شوي، دوي به پخپلو مذهبي مراسمو کي د دې بوټي شیره چیښل، او یو راز مشروب به ئې ځني تیاراوه، چه نشه ئې درلوده او ډیر مقوي او تود و.

د دې بوټي نوم له قدیمه تر اوسه ډیر مشهور دي، او په عربي ئې "هوم المجوس" بولي او شرح ئې داسي لیکي: یو بوټي دي یاسمین ته ورته لږ څه شیریني او حدت لري، هوم المجوس ئې له دې جهته بولي چه آتش پرستان ئې د خپل عبادت پر وخت استعمالوي.[1] علامهٔ البیرونو د دې بوټي شرح هسي لیکي:

له جنسه څخه دي، حکیم میر عبدالحمید وایي: چه هوم المجوس یو ګل دي، چه جعفري ئې بولي ډېر اقسام لري، طبیعت ئې په دریمه درجه تود او وچ دي، ځني ئې ګلان د ساړه او وچ طبیعت لرونکي ګڼي، خواص ئې دا دي: جالي حاد مخفف، د سنګ مثانې لپاره ئې د ګلو خیسانده مفیده ده ګل ئې د تپ د وینو د بندولو لپاره مستعملیږي...[1]

د اروپا نوي پلټونکي هم د دې بوټي ډېر تفاصیل لیکي، د دوي د تحقیقاتو لنډیز او نتیجه لاندي راوړله کیږي، چه د هوما په خصوص کي لږ څه د نوي دنیا د پوهانو افکار هم دلته ښکاره سي، مادام راګوزن لیکي: د سوما بوټي په لوړو غرو کي پیدا کیده. د دې بوټي پرستش په آریائي اقوامو کي تر بیلتون دمخه شروع سوي و، دوي لمړی د دې بوټي څخه مشروب جوړاوه وروسته پخپله د یوه رب النوع په ډول ومنل سو. او هغه چا چه دا بوټي مقدس نه ګاڼه آریائیانو په سپکه ورته کاته، د سوما سوداګران او خرڅونکي ئې مجرمان ګڼل، او هغه څوک چه سوما وساتي، او شیره ئې ونه کاږي، دوي دشمنان بلل، دا خلق د غرو پونده سوداګران وه، چه سوما ئې له غرو څخه وړه، او خرڅوله به ئې او په یوه خاص ډول به ئې د هند له آریائیانو څخه قیمت اخیست، هغو به تل داسي غوبي چه رنګ ئې تک ژړ (فاقع) ؤ په ښه ډول ساتل او دغه غوبي به ئې د سوما د بوټي په عوض کي ورکول داسي ښکاري: چه د سوما بوټي شیدې یا شیره درلوده، ښاخونه ئې کلک وه، پر ښاخلو باندي بلګونه نه وه، رنګ ئې سور یا طلائي و. نارونه ئې د دباندي خوا لکه د نل بند بند ؤ، له دغه څخه تروه او ګاټه شیره په نښتیځلو وته، او له دغه سره به ئې ځیني نور اجزا ګډول، او د عبادت د وخت لپاره به ئې مشروب ځیني جوړاوه، ونډشمان Windischmann وائي: چه دا بوټي به د سپوږمۍ په شپو کي پیغلو او نجونو ټولول، په یوه ګاډي کي چه دوو مړو به چلوله، د قربانۍ تر ځایه وړل کیده، وروسته به روحانیونو اوستانو، یوه ښاخه لاندي او بله ډبره باندي کړه، دغه بوټي به ئې کوټل، او په لاسي اونګ کي میده کول، بیا به ئې تر پشمي ټوکر صافول، په دغه شیره کي به وروسته شیدې یا اوړه ورسره اچول او تخمیر کول به ئې، دا مشروب دوي په ډېر شوق چیښه، او د ژوندانه ساتونکي او د

وايي چه لومړۍ پلا یوه ساماني ګربت (عقاب) چه سینا Cyena ئې نوم و د هریتي بریزا Haratibareza له غره څخه دا بوټي راوړ، او د یوپائیري سینا Upairisaena (هندوکش) سیترا Staera (تیرا) کوسرادا Kusrada ( د غورکوراسون غر) پورانا Paurrana (پروان) سپي تاګوناګیري Spiya-Gaona Gairi (سپین غر) پر غرو ئې خپور کړ.[١]

د هوم یشت له دغه بیانه ښکاري، چه د دې بوټي د شنه کیدو او د دوي ځاي د افغانستان مشهور غرونه وه، تر اوستا دمخه په اتهروا ویدا کي هم د سوما بوټي د شنه ګیدو ځاي د منجوان Mangoavan غر ښودل شوي دي، او دا هغه غر دي چه اوس ئې منجانن بولي، د نورستان او بدخشان تر منځ واقع دي، او د جرم دره پکښي ده، د اتهروا ویدا (منجوان) او سوسني منجان تر منځ فقط د واو د حذف فرق دي واو خو حرف علت دي، او هیڅ قیمت نلري.

په اتهروا ویدا کي د یوه قوم ذکر راغلي دي، چه موجاوان Mujavans یا موحاوانت Mujavants نومیږي، دا قبیله د بهلیکا سره یو ځاي ذکر شوې ده چه مقصد ئې هغه د بلخ خلق دي. ګریفت وايي چه موجاوان یوه قبیله ده، چه د هند په شمالي غربي خواکي اوسیده.[٢]

ماکډونل وائي: چه دا قبیله د ګنداري قبیلي سره ګاونډۍ وه ځکه چه ګنداریان د کابل او پیښور تر منځ میشته وه نو به د دوي په شمالي خوا یعني د لغمان او نورستان به شا او خواکي منجوان اوسیدل.[٣] چه د اتهروا ویدا په قول د بلخ له خلقو سره هم دا قبیله نزدې ده.

مورګینسټرن G. Morgensterne ناروېژي مستشرق هم دغه منجان هغه تاریخي منجوان بولي او د شرقي پوهنو په کتاب کي مفصلاً شرح لیکي[٤] له دغو ټولو توضیحاتو څخه ښه ځرګندیږي ، چه هوما یا سوما اصلي ځاي زموږ د هیواد جګ جګ غرونه وه، او دا بوټي د دغه ځاي و، د سوما د بوټي په تشخیص کي هم نوو پوهانو راز راز نظریې ښکاره کړي دي، مثلاً ګریفت د یوې مجلې په حواله چه Quarterly Review[٥] نومیږي هسې لیکي:

Bornmuller چه په کرمان کي ډیر عمر اوسیدي سوما د افډرا یوه نوعه ګڼي او وایي چه له سائبیریا څخه بیا د ایشیا تر غربه د افډرا ډیر انواع موندل کیږي[۱].

سر اوریل ستاین انګلیسي مورخ او مستشرق هم دغه شرح مني، دی لیکي: چه دکتو ایچیشن د افغانستان د سرحداتو د تحدید د ډلي عضو و، ده له بلوچستانه تر هري روده په ډبرینو مځکو کي دا بوټي موندلي دي (چه هوم بندک) hombandak ئې هم باله، پخپله اورل ستین وایي چه په ۱۹۱۵ع کال ما هم د ایران او افغانستان په سرحداتوت کي دغه بوټي ولید چه خلقو هوم باله او افډرا هغه تاریخي هوما دي چه په ویدا او اوستا کي ئې ذکر راغلي دي.[۲]

په دې ډول هوما یا سوما دغه بوټی دي، چه په علمي ژبه افډرا بولي، او آریائیانو به شیدې او شات ورسره ګډوله، او مشروب به ئې ځیني جوړاوه. اوس به وګورو چه په پښتو د دې تاریخي بوټي نوم څه دي؟

دمخه مو وویل چه د سنسکریت (س) تل په اوستا کي په (هـ) اوړي، نو سوما هوما شو، تر میم وروسته الف فقط د میم د زور ښکاره کولو لپاره لیکل کیږي ځکه چه په پښتو کي د زورکار (هـ) هم ورکوي، نو باید په پښتو رسم الخط دا کلمه هومه ولیکو. (هـ) هر وخت پښتانه په همزه اړوي، مثلاً هګۍ، اګۍ بولي، هلک ته الک وایي. د هومه لومړی حرف که په همزه واړول سي (اومه) به شي.

پښتانه یوه بوټي ته اومه (په مجهول واو) وایي، چه په غرو او ډبرینو مځکو کي شین کیږي، دا بوټي نر او ښځه اقسام لري، په هندوکش او سپین غره او د تیراه او د مهمند په غروکي دا بوټي ډیر دي، په قندهارکي اومان بولي، جنوبي وال ئې هم اومه یا ماوه بولي، د پاړسو په اصطلاح (بندک) دي. په نورستان کي هم دا بوټي تر اوسه سوم بولي.[۳]

د دې بوټي ایرې خلق د خولې په نسوارو او باروتو ګډوي، ښاخلي ئې بلګونه نلري، نیم ګز قدر لوئیږي، بند بند وي، یو راز ثمر لري، چه مات ئې کي شیدې ځني راوزي ځني خلق ئې ایرې د کشتې په نسخوکي هم

### چهند Chhandas

دا کلمه په ویدي ادب او ویدي ژبه کي ډېر اهمیت او شهرت لري، په پښتو کي خو اوس مستعمله نده، مګر په زاړه ادب کي ژوندۍ وه، او په غزنوي او غوري دورو کي لا هم مستعمله وه! دلته به لومړی د دې لغت تاریخي اهمیت ښکاره کو، بیا به ئې په پښتو کي در وښیو.

دمخه مو د ویدو د ملحقاتو او زمانو په بحث کي ولوستل چه چهند په ویدي اصطلاح عروضي اصولو ته وائي، او د ماکس میولر په قول د ویدي ادب خورا زړه برخه چه په ۱۲۰۰ تر ۱۰۰۰ ق،م اړه لري چهندس بلل کیږي. یعني عروضیات. د ویدا په ملحقاتو کي هم څو کتابونه په دغه علم اړه لري هغه وخت چه پاڼیني نومي مشهور ویدي عالم او ژب پوهاند د سنسکریت ژبه ترتیب کړه د ریګویدا ژبه ئې چهندس وبلله یعني د نظم او عروضو ژبه یا د ویدي شعر ژبه، تي وي آر ډاویډس T.W.R. Davids د بودائي ادب پروفیسر وایي چه د چهندس اصطلاح په بودائي دوره کي هم وه اکثر بودائي ادبي کتب او آثار په چهندس ډول لیکل شوي دي هغه ډول ژبه چه برهمانا۔ او۔ پنشدا د ویدا ملحقات په لیکل شوي وه د ګرامر پوهانو چهندسه Chhandasa بلله یعني د چهندس ژبه یا د ویدي شعر ژبه. بودا هم خپله وینا word په دغه چهندس لیکلې وه خو هر چا به په خپله ژبه ویله.[1]

په حقیقت کي چهندس د اداء او تلفظ او وینا هغه اصول وه چه د ویدا کتابونه په لیکل شوي وه دا یو راز نظم و، وروسته داسي منظومه وینا د ویدا په تعقیب او پیروۍ رواج شوه او دغه ډول وینا ئي چهندس وبلله ځکه چه اصل او اساس ئې پر نظم ایښود شوي و، نو د هر نظم او شعر اصولو یعني عروضو ته ئې هم چهندس وویل او دا اصطلاح وروسته پر هر عروضي شاعر باندي اطلاق کیده لکه دمخه چه مو ولوستل په ویدي شپږو علومو کي چهندس ډېر مهم علم و، د ویدو د نظم او تلفیق ټول اصول پکښې بیانیدل دا علم د وینا او فصاحت معیار و، هغه وخت چه پنګل Pingale خپل کتاب چهنده سترا Chhandahsutra وکیښ د عروضو اصول ئې پکښې څرګند کړل وروسته د ویدا په ډېرو شرحو کي د دې علم بیان وشو. د پنګل د کتاب شرح هلایودهه Halayudha نومي

د هندوانو کتب اکثر نظم دي، او هم له دغه جهته ئې د علومو زده کړه گرانه ده ما د اقلیدس او مجسطي کتب دوي ته ترجمه کړل، او د اصطراب فن مي د دوي په ژبه ورته ولیکي. دوي له هغونو شتو څخه نظم جوړ کړ او ځکه چه په نظم کي توضیح نه وي، نو ئې دا کار ډېر ځانته گران کړ!

د چهند فن لومړی پلا پنگل او چلت نومو پوهانو ایجاد کړ، او کتابونه ئې پکښي وکښل تر ټولو مشهور کتاب ئې گیست دي، چه د څپل مصنف په نامه مشهور شوي دي. د مرگلانچن او پنگل او اولیاند کتابونه هم معروف دي.[۱]

دا و د چهند د کملې تاریخ چه وروسته په سنسکریت کي عموماً د اشعارو معیار او علم العروض ته هم چهند ویل کیده، او دا کلمه د دغي ژبي معروف لغت سو.[۲] په پښتو کي اوس دا کلمه مستعمله نده، خو په زاړه ادب کي موجوده وه، ښکارندوي غوري د سلطان شهاب الدین غوري (۵۶۹-۶۰۲) معاصر پخپله یوه قصیده کي هسي وایي:

په بربڼ چه ږغ د چونیو نغوړیده سي　　　　ته وا چندي سره پیودي اشلوکونه[۳]

چندي دلته د شاعر او ناظم معنا لري، د پټي خزانې په قلمي نسخه کي هم دې کلمې ته د شاعر معنا کښلې شوې ده، او له دې څخه ثرگندیږي چه هغه پخوانی چهند ته منسوب نوم دي (هـ) چه په دې کلمه کي وه، وروسته هیسته شوې ده او داسي ډول (هـ) له اکثرو کلماتو څخه لویږي، ځکه چه صوتي حرف دي او د پښتو په صایتو حروفو (علتو) کي هم شامل دي.

د دې کلمې دا معنا له موقع څخه هم معلومیږي، پیودل په پښتو نظم کولو ته وایي، اشلوک هم قدیمه آریائي کلمه ده، شرح به ئې وروسته راسي.

## اشلوک یا ashlok ishlok

دا کلمه په سنسکریت کی د شعر او نظم verse په معنا ده[٤] او داسي معلومیږي چه اشلوک غندي اشعار په

او دریم پد کي به ثقیل وي، نور حروف چه هر راز وي پروا نلري. اشلوک د هندی کتابو بنیاد دي.[1]

په دې ډول داسي ښکاري چه د اشلوک په معنا کي تخصیص تر تعمیم وروسته راغلي دې، لومړی ئې مطلق نظم او پیودلي کلام ته (اشلوک) وایه، وروسته د نظم یو مخصوص ډول شو، او د سنسکریت په عروضو کي تر مخصوص قالب لاندي سو.

تاسي دمخه د چهند په بحث کي ولوستل چه دا کلمه د ښکارندوي په یوه قصیده کي راغلې ده، هلته په قلمي نسخه کي دې کلمې ته د (اشعار) معنا کښلې شوې ده، چه کټ مټ هغه قدیمه معنا ده. داسي معلومیږي چه دا کلمه تر ٦٠٠ هـ پوري په پښتو کي هم مستعمله او ژوندۍ وه، او له دې څخه چه په پښتو کي مستعمله وه دا ثابتیږي چه پخوانۍ آریائي کلمه ده، او پخپل اصلي ټک او هیواد کي ژوندۍ وه.

### د سنسکریت نوم Sanskrit

تاسي دمخه هم ولوستل چه سنسکریت د تهذیب شوی، بشپړ شوی، او سمه شوې معنا لري، او په لنډ ډول مو د دغي ژبي تاریخي وده او نشونما هم دمخه زده کړه، اوس ئې لغوي تحلیل وګوري:

اصلاً دا نوم مرکب دي، لومړي جزو ئې (سم یا سن) دي دا لغت په دوه ډوله قدیم آریائي لفظ دي. په پښتو کي اوس هم (سم) د (راست، مستقیم، درست) په معنا سته، مثلاً سم لرګی، سمه لکړه، سمه لار، سم کار او نور ... دې کلمې پخوا نور مشتقات هم در لودل، چه اوس لږ مستعمل دي مثلاً سمي samay د اصطلاح او بهبود او ښېګړي په معنا لکه شیخ متي چه وائې:

په غرو کي ستا د عشق شپیلکۍ دي    د دې نړي په عشق سمي دي[2]

یا سما sama د تنظیم او انصاف او عدل په معنا، لکه شیخ اسعد سوري چه وائې:

له سما وي ودان آهنګران و    په ټیکنه ؤ په درست جهان او ښار[3]

samapt تکمیل، تمامول، سمول، ترتیب او تهذیب کول.[1] د سنسکریت لومړي جزو هم دغه سم یا سن دي، چه ریښه ئې قدیمه آریائي ده او ښائي چه له اصلي آریائي ژبي څخه په پښتو کي تر اوسه پاته وي، او سنسکریت ته هم تللې وي، د میم او نون سره اوښتل په پښتو کي اوس هم ډېر دي، مثلاً مښتل، نښتل، منبلي، ننبلي، یا لکه لانده، لامده، لنده، لمده.

دوهم جزو ئې سه یا زه دي چه کټ مټ د پښتو ښه اوس موجود دي، په سنسکریت کي وائي سوډول sadaul یعني ښه ډول او ښه خیره[2] چه عیناً اوسنۍ پښتو ده تاسي دمخه ولوستل چه (س،ش،ښ) د یوه مخرج او سره نژدې حروف دي ابدال ئې هر وخت روا دي (واو) او (هـ) هم دواړه صوتي او د علت حروف دي په اوښتو کي کم قیمت نلري، ځکه چه د سنسکریت (س) هر وخت د اوستا په (هـ) اوړي، نو په اوستاکي دا کلمه (هو) ده.

د دې نامه درهم جزو (کریت) دي، چه معنا ئې (کرده شده) دي او دا هم د پښتو کړ ته ډېر نزدې دي، په سنسکریت کي کرن karan کټ مټ د پښتو کړن یا کړل یعني کول (وکردن) دي.[3] نو د سنسکریت کلمه له (سم زه کرته) یعني (اصلاح کرده شده) څخه محرفه[4] ده او دا کټ مټ د پښتو سم ښه کړي "یعني ښه سم کړې" عبارت دي چه د ژبي د تانیث له جهته باید "ښه سمه کړې" وویله سي[5] یعني به ښه ډول او ښکلي توب سمه کړې ژبه چه کټ مټ په دغو معناو "ښه سمه کړې، ښه آراسته کړې، ښه ترتیب او تنظیم کړي، ښه بشپړه کړي" د ژبو پوهانو هم ضبط کړیده.[6]

او د کلمې له تحلیل څخه پخپله د سنسکریت په نامه کي د پښتو ژبي اغیزه ښه ښکاري.

### دسیو Dasyu

هغه وخت چه آریائي اقوام د افغانستان له غرو او ورشوو څخه د هند خواو ته شیوه شول او تر اباسین ور تیر

دا کلمه په هند کي د آرین یعني نجیب او شریف په مقابل کي استعمالیده. آرین چه غنم رنګي انسانان وه، د "شریف" په نامه ئې ځانونه ستایل، او د هند تور لینګیان ئې "دسیو" یعني دښمنان او بد خلق او بې شرفه ګڼل، د ویدي عصر شاعرانو دوي پیت پزي او تور پوستي بللي دي، او دغه اقوام اوس په هند کي "دراویدي" بولي.

په ریګویدا کي د آریائیانو او دسیو د جګرو ډېر تفصیلات راځي، او هرکله دوي له خپلو ارباب انواعو څخه خپل بری پر دسیو باندي غواړي، اندرا چه د جنګ رب النوع دی، هرکله دسیو سره جګړې کوي.[1]

تر ویدا وروسته د ایران د داریوش په ډېر لیک کي هم د آریائي اقوامو په مقابل کي د دوي د مستملکاتو خلق په دې نامه بلل شویدي، او وروسته په هند کي د دې کلمې معنا لږ تغیر خوړلي (داس) تش د غلام او مریي او چوپړي په معنا پاته شوي دي.[2] ګییګر الماني وایي چه په اوستا کي دانو هغه دانوه یا د ریګ ویدا (دسیو) او وروستني (داس) دي، چه د آریائیانو دښمنان او رقباء وه، دانو چه په ۱۳ یشت ۳۷-۳۸ فقره او په ٥ یشت ۷۳-۷٤ فقره کي راغلي دي د ارباب انواعو دښمن او اندرا ئي سخت مخالف دي، د ګراسمن به ډکشنري کي هم دانو او داسه دواړه له یوې ریښې څخه را وتلي نومونه دي.[3]

د اوستا په ځینو برخو کي دژ یا دش Dush عموماً د بد او بابیز په معنا و، چه د ډېرو کلماتو په سر پوري دا کلمه نښته، د خورده اوستا په اور مزدیشت کي (دوش مینو) لیدل کیږي[4] چه دغه اوسني د پارسي ژبي (دشمن) هم له هغې زړې کلمې څخه جوړ شوي دي، تر پهلوي ژبي دمخه چه کمه ژبه ویله کیده په هغې کي (دشمیر) دشمن او معاند او ضد په معنا و[5] دغه (دش) د ډېرو پاړسو کلماتو په سر کي راځي لکه دشمن، دشنام، دشوار، دژخیم، دوزخ، دزد.

له دغو ټولو مطالعاتو څخه ښکاره شوه چه د ویدا دسیو، داس او بیا هم دانو او د اوستا دش مینو او بیا د پهلوي دشمبر له یوې ریښې څخه دي، او هم په سنسکریت کي دش dash کټ مټ هغه (داس) دي، چه د مریی او غلام او کښته په معنا ئې او داش هم دغسې دي.[6]

(دښن) به سي، لکه پم او پمن، خیره، خیرن، پخه، پخن، او نور. نو چه (دښ) د بد او بابیز او ضد په معنا و (دښن) هم دغو صفاتو ته منسوب کیږي، او د (ن) د ادات له خواصو څخه دا ده چه اکثر د عیوبو لپاره راځي.

د (دښن) کلمه په پښتو کي خورا عامه ده. او په پخواني ادب کي ښه ځاي لري، جمع ئې "دښنه" او "دښني" هم د دشمنۍ به معنا مستعملي کلمې دي، مثلاً سلیمان ماکو وائي: پر دښن ئې یرغل وکاوه... سره ومړوړل ئې دښنه.[1]

ملکیار وائي: توري تیرې کړئ ... دښن مو پرې کړئ.

بابا هوتک وائي:

زلمو پر ننګ ځانونه مړه کړي    دښن په عشیو مو پییه کړئ[2]

امیر نصر لودي د پښتو خورا پخواني شاعر وائي:

زما دښنه هسي تورا کړي    یا توراني دښن چه وایي[3]

عبدالقادر خان خټک وایي:

خو عارف د چا په ښو شکرګزار دي    نه په بدو د دښنه لري ګله

### څلور ډلي Caste

هغه وخت چه آریائي اقوام په افغانستان کي اوسیدل، او د باختر او هندوکش په ورشوګانو کي پراته وه، دوي ځانته ځیني اداري او ملي تشکیلات درلودل، په مساوات ئې ژوندون کاوه، مګر چه دوي تر اندهوس (اباسین) ور واوښتل او په هند کي خپاره شول، هند تر دوي پخوا د تور لینګي اقوامو او تور پوستانو ډک و، له هغه سره د دوي جګړې وې، او پخپله آریائیانو ځانونه سپین پوستي بلل، په ریګویدا کي دا فرق او امتیاز ذکر شوی، او له تورو دسیو سره د سپینو آریائیانو مقابله داسي شوې ده:

آريائيانو دوي نجس او مردار خواره ګڼل.[1]

هغه وخت چه آريائيان د هند په ځمکو کي خپاره او غالب او برياليي شول نو دوي د هند خلق پر څلور ډلي وويشل پخپله آرين درې ډلي وه، څلورمه ډله هغه دسيوګان او تور لينګيان وه، چه ذکر شول. دې ويش ته په انګريزي کي کست caste وائي چه له پرتکالي کاستا يعني نژاد او نسل څخه ئې اخيستي دي، مګر په سنسکريت کي ورنه vorna يعني رنګ color بولي، ځکه چه دا تقسيم هم پر تور او سپين رنګ باندي شوي ۋ.[2]

د رنګ او نسل ويش لومړي په آريائيانو کي نه ۋ د ويداد دورې په اواخرو کي پيدا شوي دي، ځکه چه په لومړيو ويدو کي د دې ويش کوم ذکر نسته، او نه ئې نومونه راغلي دي، فقط د لسم ويد په ۹۰ برخه کي چه پرش Purush ئې بولي په افسانوي ډير د دغو څلورو ډلو د پيدا کيدو ډول ښودل شوي دي، مثلاً: "چه د پردوش بدن ئې تقسيم کړ، برهمن ئې له خولې څخه، راجنيا ئې له مټو څخه ويش ئې له ورنو څخه، او شدر ئې له پښو څخه پيدا شول".[3]

په ويدا کي فقط دغوني د څلورو طبقو ذکر راغلي دي، زياتي څه نسته، خو د هند آريائيانو د دغو څلورو ډلو امتياز هسي وايي، چه خوله پر ټولو اعضاؤ باندي شرف او لوړتيا لري، نو برهمن چه له خولې څخه پيدا شوي دي، کار ئې ښوونه او پرمان روايي ده، هغه څوک چه له بازو او مټه پيدا شويدي، کار ئې جګړه، او ساتنه او قوت دي، کم خلک چه له ورنو څخه را وتلي دي، د دوي کار دا دي، چه د تمدن نظام ټينګ کړي، او وداني او کښت او زراعت د دوي وظيفه ده، مګر هغه چه له پښو څخه پيدا شوي دي کار ئې فقط چوپړ وهل او خدمت کول دي.[4]

د څلورو فرقو د پيدا کيدو دغه افسانوي رنګ تر اوسه هم په هند کي موجود دي، لومړي ډله ځانونه ډير شريف ګڼي او دا درې ډلي له شدر (دسيو) سره کورنۍ مخالفت نکوي، اچهوت يعني ناملموس ئې بولي.

د دغو څلورو فرقو له نورو خصوصياتو سره دلته زموږ کار نسته، فقط دلته دا څلور نومونه چه د آريائيانو زاړه ژوندون سره اړه لري، د پښتو له پلوه تحليل کوو، ځکه چه ځيني پوهان وايي چه دا څلور سره کلمي پښتو دي، او

مقدس او روحاني دي، د هند مشهور مقنن منو Manu بر برهمنانو وظايف هسي ټاکي: خداي برهمنانو ته دغه وظايف مقرر کړي دي د ويدو ويل او په نورو لوستل، ځان او نورو ته قرباني کول، خيرات ټولول او ورکول... برهمن چه وزيږي، د ټولو مخلوقاتو خاوند وي، او په دنيا کي تر ټولو معزز وي، د دين، د خزانو ساتونکي هم دي وي، برهمن د خپل حسب او نسب د لوړتيا لامله د هر څه مستحق دي که دی د لسو کالو وي او کشترېِ د سلو کالو، بيا هم پر کشتري د ده درناوي او عزت لازم دي.[١]

پوهان د برهمن ترجمه په (دعا کونکي يا نمانځونکي preist) کوي[٢] او دا کلمه له (برمهه) څخه جوړه شوې ګڼي، برمهه د دعا او مقدسو سندرو په معنا و، چه وروسته ئې تحول وکړ، او يو مجرد جوهر او اعلي موجود شو، چه هر ځاي او په هر شي کي سته او بيا نو د يوه بيل رب النوع په مفهوم وپيژاند شو.[٣]

په اوسنۍ پښتو کي کټ مټ دغه تاريخي آريائي کلمه سته، برم bram عظمت، جلال، لوړيا، حشمت ته وايي، د برم خاوند يعني د عظمت او لوړتيا خاوند له برمه ولويږي يعني له جلاله او عظمته پريوزي، پلاني په برم کي دي يعني د حشمت او جلال په حالت کي دي، خوشحال وائي:

که هندو که مسلمان د پټ په کار کي ... چه مي وليدل د هيچا نشته برم

دلته برم bram د آزرم او نرم او چرم په قافيه کي راغلي دي، داسي معلوميږي چه د خټکو محاوره دغسي وي.

د برم اوسني معاني هغه تاريخي مفهوم ته نژدې دي لغات او کلمات د خپل تحول په دوره که دغسي تغيرونه کوي، مثلاً (برمه) ډير پخوا په ويدي عصر کي د نمانځني او دعا او ستايني معني درلودل، وروسته يو مجرد د تخليق جوهر، او بيا د لوي رب النوع نوم سو، په دغو ټولو معناؤ کي د جلال او عظمت او قوت او قدرت معاني پراته دي، چه اوس ئې په پښتو کي هم په دغو معناو مستعملوو.

له برمه څخه برهمن داسي جوړ شو، چه يو د نسبت ادات (من) چه اوس هم په پښتو کي سته، پاي ته پکښي

ممتازه طبقه هم دوي وه، او نور ټول طبقات يې هم خادمان ګڼل کيده.[1]



## کشتري Kshtari

دوهمه طبقه ده، چه په ويدا کي راجنيا Rajanya او په وروستو کتابو کي کشتري او بياچهتري ذکر شوې ده پخبله لومړي کلمه د شهزاده او سرباز او جنګي معنا لري.[2]

په منو شاستر کي د کشتري Kshatriya په نامه ياده شوې ده، او دغه لوي مقنن ئې وظايف هسي تعيين کړي دي. کشتري ته حکم وشو چه د خلقو حفاظت وکړي، انعام او بخشش ورکړي، قرباني وکړي، ويد ولولي، له شهوت پرستي څخه ځان وساتي.[3]

دا طبقه تر برهمن وروسته دوهمه مقتدره ډله ده، چه پاچهان او مشران له دوي څخه وه، اهل اداره او د سياست خاوندان هم دوي وه، عسکري امور، جنګي چارو په دوي اړه درلوده، دوي د برهمنانو د برم او عزت وسيله وه، او تر هغو وروسته ئې غټ غټ امتيازات درلودل، کشتري بايد تل به جنګ کي ونه تښتي او خپل رعايا وساتي، او د برهمنانو احترام وکړي، دغه دري خبري د کشتري لپاره ضروري وې.[4]

علامه البيروني وايي: چه د کشتر لپاره برم او بړبست ضروري دي، خلق بايد له ده څخه وبيريږي دی ښائی چه بهادر، غښتلي، حوصله لرونکي، متين، زبور، ښندونکي وي، او لوړ لوړ کارونه په سواني اجرا کړي.[5]

په دې ډول د کشتري وظايف اداري او عسکري وه، او نوم ئې هم کټ مټ دغه مقصد ښه را ښئي، او په پښتو کي ټينګي ريښې لري، بلکه سوچه پښتو دي، کشتري په پښتو کي له دوو کلمو څخه جوړيږي، لومړي جز ئې کش دي چه په پښتو (کښ) ورته وايو، کښل يعني (کشيدن، آختن) هم له دغي ريښې څخه متداول ژوندي مصدر دي د (کښ) په الحاق پښتو ډيري کلمې لري لکه زيارکښ، امبارکښ، ګورکښ، او کښ د آختن په معنا له توري او تيغ سره راځي مثلاً توره کښل، چاره کښل، خوشحال خان وايي:

پخوا پښتو د عسکر د نامه لپاره له دغو دوو کلمو څخه کار اخیست، او لښکر او سپاهیان ئې د (کښتري) په اوسني املا (کښتوري) بلل یعني توري کښلي (شمشیر آختگان). دا کلمه د الفاظو په اړولو او مقلوب کولو (تور کښ) د عسکریت په معنا هم مستعمله وه، او کټ مټ ده هغه (گښتوري) مقلوبه ده.

د پښتو یو ډیر پخواني ادبي اثر (خیر البیان) دي، چه د زرم هجري کال په حدودو کي د پښتانه د فکر او فلسفې یوه نابغه بایزید روښان لیکلي دي، او قلمي نسخه ئې مشهور مستشرق سر دینسن راس پیدا کړې، او نارویژي خاور شناس مارگن سترن یوه مقاله د دغه کتاب په باب کي کښلې وه. په دغه مقاله کي له خیر البیانه څخه څو مخه په لاتیني حروفو چاپ شویدي، چه په یوه جمله کي دغه د (تور کښ) کلمه هم راغلې ده، او هغه دا ده: مشغول دي ډیر آدمیان په کرلو په بازرگاني باندي یا په پوند گلي، یا په تور کښ باندي، ځیني په نور نور چاري مشغولي کا آدمیان.[۱]

دلته د خیر البیان لیکوال د انسانانو چاري او وظیفې (زراعت، تجارت، او عسکریت) ښئي، او عسکریت (تور کښ) بولي او داسي ښکاري چه دا کلمه تر زرم هجري کاله هم مستعمله وه، او زوړ شکل ئې هغه تاریخي کشتري دي.

### ویسیا Vaicya

دا نوم په ویدا کي ویسیا، او په سنسکریت کي ویس Vais، ویسیه Vyasy ویشیا Vaishya راغلي دي او پسله کشتري دریمه طبقه ده.[۲]

منو مقنن وایي: چه ویسیا باید غلې وساتي، انعام ورکي، قرباني وکړي، ویدا ولولي، تجارت وکړي، پور ورکړي. کرهڼه او زراعت هم د ده کار دي.[۳]

د دې طبقې وظیفه په آریائیانو کي تجارت او زراعت او نور مدني او عمراني کارونه وه، غلې او گلې به دوي

علامه البیروني دا نوم (یش) راوړي چه د (ویش) معرب دي، او وظایف ئې هم کټ مټ دغسي ښئي لکه لوړ چه ذکر شول[1] او له دغو ټولو څخه سړي ته ښه معلومیږي چه د ویسیا وظیفي او کارونه ټول داسي وه، چه په اعتماد او اعتبار او رښتي ئي اړه درلوده، پخپله منو مقنن د دوي په اجتماعي وظایفو کي اعتماد او باور او ویسا لوي او مهم شرط ګڼي[2] او که سړی ورته ځیر شي هم دغه مهم وظایف یعني تجارت او زراعت او مالداري بیله ویسا نه کیږي، او د ټولو اقتصادي کار او آره او سټه هم پر اعتماد او ویسا ولاړه ده.

وګورئ ګټ مټ د دغي طبقې نوم هم (ویسا) دي، او هیڅ لیري نده، چه د پښتو (ویسا) او دغه (ویسیا) له یوې ریښې څخه وي!

ویسا په پښتو ادب کي ډیره مشهوره کلمه ده، معنا ئې اعتماد، باور او اعتبار ده، خوشحال خان وائي:

په دا ساه نشته ویسا هر دم ته وایه الله

یعني په نفس اعتبار او اعتماد نشته. بل ځاي وائي:

هر چه کټګان دي په صوبه کي د خدا ځوک په بند دي ځوک لاګرزي نا ویسا

یعني بې اعتبار او بی اعتماده ګرزي.

ښائي چه اصلي ویدي نوم له ویسا سره مشترک (ویسیا) ؤ، وروسته په دې نامه کي تغیر راغلي، ویشي، ویش سو په عربي (بیش) البیروني راوړي دي دغه (ویش او بیش) د عوامو په معنا هم په پښتو کي مستعمل و، ځکه چه دا دریمه طبقه عوام وه، او برهمن او کشتري له خواصو څخه ګڼل کیده.[3] خوشحال خان وائي:

زه خوشحال دي د بدۍ نیکي ګواهي لم د ښایست مخي دي نشته په خوي ویښئې

د بیت آخرۍ کلمه داسي ده (ویښ ئې) یعني په ښایست کي له خواصو او په خوي له عوامو څخه یې! له دې څخه هم معلومیږي لکه ویسا چه په پښتو ادب کي مستعمله او ژوندي کلمه وه، وروستني (ویش) هم مستعمل ؤ!

منو مقنن وايي: چه شودر بل هيڅ کار نلري، بيله دې، چه د نورو خدمت وکړي، او دوي راضي ولري.[۱] شودر غير آريائي خلق وه، نو ، ځکه دوي ئي ذليل او نا نجيب ګڼل، او ټولي کښتي پيشي او کارونه دوي ته محول وه، مثلاً دوبي ګري، موچي ګري، بازي ګري، ماہوتوب، ماهي ګيري، د وحشي مرغانو ښکارل، ټوکرۍ جوړه ول، چنډالي، ډمبتوب، او نور.[۲] شودر، سودر، او شدر ټول د دې کلمې مختلف اقسام او اشکال دي، او د شودر معنا هم کښته، ذليل، نانجيبه ده[۳] چه درو نورو ډلو دغه خلق له ځانو سره نه ګډول او دوي ئې بي شرفه او ډېر کښته خلق ګڼل.

دا کلمه د پښتو (سوډر) سره هم په معنا هم په لفظ کي نژدې والي لري په پښتو سوډر (نالايق، کښته، بي عقل، بې تهذيب، ناپوه) ته وايي مثلاً پلاني خوشي سوډر سړی دي، يعني ناپوه او نالايق دي.

دا کلمه تر اوسه هم ژوندۍ ده، او کله ئې خلق د سرکوزي او خنزير په معنا مستعملوي، مګر نده معلومه چه حقيقت کم دي او مجاز کم؟

ځيي پوهان وايي: شودر اصلاً د يوې علاقې نوم و چه اباسين ته نژدي وه او په (وشنو پران) نومي هندي زاړه کتاب کي شودر، او ابهير يو ځاي ګڼل شوي دي. يوناني مورخ مګستهنيز دا خلق تور مخي بولي، او تر سکندر دمخه د هخامشيانو کومکيان وه[٤].

ښائي چه شودر لومړی د دغه ځاي نوم و ځکه چه آريائي اقوام تر اباسين پوري خو لومړی له دغو اقوامو سره مخامخ شول، نو ئې دوي داسيو او کښته او ناپاک وګڼل، او دا نوم ئې د هند پر ټولو بومي تورو اقوامو باندي کښيښو.

په پښتو کي چه د سوډر لپاره کم بد مفهوم پاته دي، دا هم دغه زاړه آريائي فکر نتيجه ده او دا دوې کلمې لکه لفظ چه سره نښتي او نژدې دي معنا ئې هم سره نښلوي.

بڼه. بڼه تر اوسه په پښتوکي د مخ او څيرې رنګ ته وايي، مثلاً بڼه ئې اللوتې ده يعني د مخ رنګ ئې الوتي دي يا پلاني په بله بڼه راغي يعني په بل رنګ راغي.

د (و) او (ب) ابدال عمومي دي، مثلاً کابل، کاول، زابل، زاول، شوربا، ښوروا نو په دغه قاعده (ورڼه) لومري پلا (برڼه) سو، ځکه چه د (ر،ڼ) تلفظ مشکل و، نو (ر) حذف شوه، (بڼه) پاته شوه.

له دغې مطالعې څخه تاسي ته ښه ښکاره کيږي، چه لکه د څلورو ډلو نومونه چه پښتو دي، دغسي هم د ډلو د جوړيدلو اساسي نوم هم پښتو دي، او هغه ويدي کلمه اوس هم په پښتوکي سته، چه شکل ئې (بڼه) دي يعني رنګ color بل اکثر محقيقين دې خبري ته ټينګ دي چه دغه د څلورو ډلو ويش د آريائيانو د هند تر هجرت دمخه نه ؤ، دوي پخپل اصلي هيوادکي د مخني درې ډلي درلودې څلورمه ډله چه شودر ده په هندکي پيدا شوه.

د دې خبري بل ټينګ دليل دا هم دي چه د باختر (بخدي) آريائيانو هم درې ډلي درلودې او په اوستاکي نومونه داسي ذکر شوي دي خوتو Khvaetav ورزن Verezena آيريامن Airyman[1] د دغو درو اوستائي ډلو په مقابل کي د هند (برهمن، کشتري، ويسا) موجود دي[2] او دا خبره ځيني ښکاري چه آريائيانو درې ډلي درلودې روحاني ډله، عسکري ډله اقتصادي ډله. دا عنعنه په پښتوکي کټ مټ موجوده ده، دوي هم د خپلو اقوامو وظايف دغسي ويشلي دي، د پښتنو يوه خورا قديمه عنعنه دا ده: "وايي چه د مړاني باد را والوت، د غرغښت، پر ژبه ونښت، نو تلقين او روحاني چاري او وينا او علم او ادب د غرغښت کار دي. دا باد د (بيټنې) پر مټ (بازو) ونښت، توره او عسکريت د دوي کار دي مګر د (څړبن) پر لمن ونښت نو دوي تل د لوئي لمني خاوند دي، سياسي کارونه او شاهي او مدنيت پالنه او وداني او زراعت او تجارت دا ټول د څړبنو وظايف دي."

دا عنعنه کټ مټ هغه زړه آريائي ريښه او اساس لري، او سړي ويلاي سي چه له ويدا او اوستا دواړو سره مشترکه ده، نو لکه نومونه اوکلمات چه پښتو وه، دغسي اصلي ويش هم د پښتو دغي عنعنې ته ورته دي.

یا به د زړه په معنا حقیقت وي مجاز به ئې اراده وي یا به اراده مجازاً مشهوره شوې وي.

د ښتو یو خورا پخواني شعر چه امیر کروړ جهان پهلوان د غور پاچا د ۱۳۹هـ په شا او خوا کي ویلي دي، دا کلمه لري دا پاچا وائی:

عشي د من می ځي بریښنا پر میرخمنو باندي[1] دلته هم ښکاري چه (من) د ارادې په معنا دي یعني د ارادې غشي مي لکه بریښنا پر دښمنانو باندي ځي.

### ستهان Sthan

ستهان په سنسکریت کي د طرف او ځاي، مرکز، موقف، سر زمین په معناو دي[2] او دا کلمه په نورو آریائي ژبو کي لکه پاړسو د (ستان) په ډول تر اوسه هم مستعمله ده مثلاً شارستان، گلستان، غرجستان، افغانستان.

داسي معلومیږي چه د ستهان کلمه پخوانۍ آریائي کلمه وي، ځکه چه آریائیان په هند کي تیت شوه، دا کلمه ئې په دغو معناو در لوده دوي دیوستهان Deva Sthan د عبادت ځاي ته ویل[3] او خپل گرد مملکت ئې هم لومړي دیوستهان باله یعني د عبادت او نیکیو ځاي، چه وروسته ئې هندوستان وباله یعني د هندوانو ځاي او هیواد.[4]

دا کلمه کټ مټ په پاړسو کي هم پخوا مستعمله وه، او مفهوم ئې هم تقریباً دغه و مثلاً فخر مدبر مبارک شاه د غزنوي عصر مورخ لیکي: "به ستهان لوهور در میان شدند"[5] دا کلمه په پخوانۍ پښتو کي هم مستعمله وه، او هم له دغه جهته ویلاي شو، چه یوه آریائي پخواني کلمه ده، چه هم دلې پخپل هیواد کي پاته، او هم شاو خوا په سنسکریت او پاړسو کي رواج شوې وه، ښکارندوي د پښتو د غوري دورې یو شاعر وایي:

د اسلام د دین شهاب د نړي لمر دي    تور ستهان ئې کړ رڼا په جهادونه[6]

## نمزدک، مزدک، نمست، مزدا

دا کلمات ټول آریائي دي، د هند او ایران په ژبو کې پخوانۍ ریښې سته، او په پښتو کې هم ډېرې کلمې سته چه په دغه ریښه اړه لري.

لومړی به سنسکریت ته وګورو: نمست namasit محترم، ستایلې شوی، معزز نمسیت namasyit یا نمسیه namasya د عزت او احترام خاوند، مجلل مکرم[1] دا مواد چه په سنسکریت کې موجود دي ریښه ئې (ن،م،س، ت) ده چه (ن) ئې په نورو ژبو کې کله کله حذفیږي (س) په (ز) بدلیږي او (ت) په (د) خو په اصل کې د احترام، نیایش، لمانځلو، او تکریم معاني پراته دي، په اوستا کې هم دا کلمه ښه موقع لري.

مزدا Mazda په اوستا کې د لوي خدای نوم دي، چه اهور مزدا یا اورمزد ئې هم باله. دا خدای دوي یو مبداء واحد مجرد ګانه چه ټول مخلوقات ئې پیدا کړي دي، دلته ئې زموږ (مزدا یا مزد) یعني دوهم جزو د دې بحث لپاره په کار دي، چه هغه (م،ز،د) حروف لري او د سنسکریت (م،س،ت) سره د یوه جنسه دي او له یوه مخرجه. په مزدا کې هم د تجلیل او تکریم معاني پراته دي ځکه چه خدای تعالي جلیل دي لوي دي، او د تجلیل او پرستش وړ هم فقط دی دي!

په پښتو او پاړسو کې له دغې مادې ځخه نماز او نمونځ، نمنځل، او نمزدک او مزګت جوړ شویدي، چه شرح ئې لاندې راځي:

## د پاړسو نماز او مزګت

نماز اوس فقط د عربي صلوة په معني دي. چه یو مخصوص عبادت دي مګر په پخوانۍ پاړسو کې دا کلمه د نیایش خضوع، تکریم تجلیل په معناوو هم وه، عبدالحي ګردیزی لیکي: "چون امیر را بدیدند همه نماز بردند و خدمت کردند"[2]

پر ځاي مزکت ليکي مثلاً: "و مريم همچنان اندران حجرهٔ مزکت بدست زکريا عليه السلام بوده" يا "روز آدينه نمزکت جامع نمازکرد"[1]

په دې ډول د پاړسو نماز او مزکت هم د هغي ريښې څخه دي چه د سنسکريت (نمست) او د اوستا (مزد) څني جوړ شوي وه، او د دغو کلماتو معنوي ارتباط هم د تجليل او نيايش او نمنځي په مفهوم کي ښکاره دي، د پښتو ژبي مونځ، نمونځ، لمونځ (نماز) مزدک، نمزدک (مسجد)، لمانځل، نمانځل، لمانځه، نمنځنه (نيايس، عبادت، تکريم) او نمنځن (با نماز و نيايش و مهر)، نمنځلي (ستوده و نيايش شده) ټول له هغي ريښې څخه دي او (ن،م،ځ) ئې هغه پخواني حروف دي، چه هم په سنسکريت، هم په اوستا کي وه، او هم په پاړسوکي سته (ځ، ز، س) درې سره د يوې کورنۍ او يوه مخرج حروف دي ادبي اسناد ئې دا دي. دوست محمد کاکړ وائي:[2]

| | |
|---|---|
| شپې ئې روڼې په لمانځو وې | په ژړا او به نارو وې |
| چه به گنبيووت په لمانځنه | يا به گنبيووت په ستاينه |

يا:

| | |
|---|---|
| يوه ورځ جهاد الفضل | ترکلوکلو لمانځل |

دلته ټول د نيايش، عبادت، تجليل په معناؤ دي.

خوشحال خان وائي:

| | |
|---|---|
| پيرځوينه، ښه سلوک نمنځنه، عدل | که دي دا خويونه شته څه غواړې نور؟ |

عبدالقادر خان وائي:

| | |
|---|---|
| سر و مال ښندل زينت د عاشقانو | عنايت، مهر، نمنځنه زينت ستاسي |

دلته د (عبادت، مهر، نوازش) معاني لري.

بل ځاي خوشحال خان نمنځلي او نمونځ دواړه له يوې ريښې څخه په نژدو معناؤ سره راوړي:

نوم دي تل وه پر دريځ په نمزدکونه.[1]

يعني نوم دي تل د مسجدو پر منابرو يادېږه، دا مزدک او اوسني مزدک هغه د پاړسو پخواني (مزکت) ته ډېر نژدې دي، او لکه چه وويل شوه، ريښه ئې هغه پخواني آريائي ده چه هم په سنسکريت هم په اوستا کي هم په پاړسو کي سته.

## ويا کرڼه Vyakarana

دمخه تاسي ته د ويدا د ملحقاتو په بحث کي په سپړو ويدانګو کي ويا کرڼه يعني ګرامر او نحو هم در وښودله شوه، دې علم په آريائيانو کي ډېر اهميت درلود د ٦٠٠م په حدودو کي دا علم ښه تکميل شو، او د پاڼيني پر وياکرڼه باندي نورو پوهانو هم شروح وليکل، مثلاً پاتنجلي خپل بارتک او مهابهاشيه کتب وکښل، شو پورما نومي عالم هم "کانتر ويا کرڼه" وکيښ، چه د مبتديانو لپاره و تر ډېره عمره دا علم په هند کي مخ په لوړتيا ؤ لکه چه پر دې آخر کتاب باندي اوه شرحي کښل شوې دي، هر څوک چه به پنډت کيدئ، نو د دې علم زده کړه ورته ضرور وه، پنډت جيادتيه او بامن په ٦٦٢ع د پاڼيني د کتاب شرحي ليکلي دي، چه کاشکابرتي نوميږي او وروسته هم ډېر کتب پر دغه علم منځ ته راغلي دي[2] البيروني وايي: چه بيا کرن د صحيح کلام او سمي وينا علم دي د اشتقاق ابحاث لري، د بالاغت اصول هم پکښي بيانيږي، د دې علم مشهور کتابونه اته دي.[3]

د سنسکريت په قاموس کي ويا کرن Vyakaran د ګرامر په معنا ويا کرني Vyakarani د ګرامرست او د ګرامر پوهاند په مفهوم راغلي دي[4] دا کلمه دو جزوه معلوميږي. لومړي جزو ئې (و-ی) دي، چه دا حروف عموماً په ټولو آريائي ژبو کي د (ګفتن) په مفهوم کي ريښه لري مثلاً د پښتو (ويي) چه کلمې او لفظ ته وائي، او په پخواني ادب کي مستعمل و، خوشحال خان وايي:

دا ويي زما دراز دي      دا منزل دور او دراز دي

فرانسي وایل voyelle او انګلیسي واول vowel (د حرف علت په معنا) د لاتیني ووکس vox یا vocare وو کاري (د بږغ کولو په معنا) د انګلیسي وایس voice (د بږغ په معنا) دا ټول دغه د (و ـ ی) ریښې لري.[۱]

نو د سنسکریت د (ویا کرن) لومړی جزو هم له دغو ریښو څخه مرکب دي، (ویا) یعني ویل، ګفتن، کلام، وینا. دوهم جزو خو کټ مټ په پښتو کي اوس هم مستعمل دي کړن، کړنه، یعني کول، نو (ویا کرن) جمعاً وینا کول، ویل، کول یا (ویي کړن) یا (ویي کړنه) ده چه کټ مټ هغه زړه معنا او زوړ شکل لري، ښایي چه دا کلمه هم زموږ له هیواده اوله پښتو څخه تللې، او په ویدي ژبه او سنسکریت کي د ګرامر او نحو لپاره مصطلحه شوې وي.

**منو Manu**

د وید ادبیان له قراره د اوسنو انساناو لومړی سړی منو Manu نومیده چه لومړی پلا اور د ارباب انواعو له خوا ده ته سپارلي شویدي، ویدا وائي : چه د وي، وس، وت Vevasvat دوه زامن وه، لومړي یاما Yama دوهم منو، مګر یاما دمخه مړ شو، نو ځکه دي لومړی فاني کیدونکي (مرتیا) بلل شوی دي[۲] پخپله وې وسوت په ریګویدا کي د ځلان او درخشان معاني لري، کله نمر او اسمان ته هم وائي، مثلاً: یوه رب النوع ماترشون Mataricvan اګني (اور) له خورا لیري ځایه چه وي وسوت یې نوم ؤ (یعني له اسمانه) راوړ[۳] په حقیقت کي د (وي وسوت) دوه زامن وه، یو له یوې موري چه یاما نومیده، د بلي ماینې زوي ئې (منو) دي چه د انسانانو اعلی مورث ګاڼه سي، کله د (منو) نوم یوازي د سړي او انسان لپاره هم راځي، او لغوي معنا ئې پوهیدونکې او منونکې ده.[٤]

د هندي آریایانو له کتابو څخه داسي ښکاري چه په پخوانو زمانو کي یو لوي طوفان راغلي و، د دې طوفان ذکر تورات او قرآن غظیم هم کوي، له هندي کتابو څخه په متسیاپران، او اګني پران، او مها بهارت کي دا قصه راځي مګر "شت پته پران" ئې خورا مفصله راوړي، میکس مولر مستقرق لومړي پلا دا کتاب ترجمه او خپور کړ،

وکړه، چه په هغه کال طوفان راغي نو دی په بیړۍ کي کښېنوست، او هغه ماهی راغي، د ده کښتۍ ئې تر شمالي غره (همالیا) پوري ورسوله، نور ټول خلق په طوفان کي مړه شوه فقط منو پاته شو، ده د اولاد خواهش درلود عبادت ئې کاوه او په ریاضت بخت و، وروسته خدای تعالي ده ته یوه ښکلې ښځه راولیږله او د دوي له اولاده څخه د منو قوم پیدا شو، آریائي هندوان ځانونه د ده له پښته بولي.[۱]

دا خو د دې پخواني کتاب د منو قصه ده، اما په مهابهارت کي هم دا افسانه راغلې ده او منو د یاما ورور بولي. په ګوت پران کي هم د منو دغه قصه راځي[۲] او داسي ښکاري، چه په هندي روایاتو او میتولوژي (علم الاساطیر) کي منو د انسانانو پلار دي، چه تر طوفان وروسته انسانان له ده څخه پیدا شویدي، مګر وروسته منو او د ده پلار د رب النوع پر ډول هم منل شوي دي.

د منو پلار وی وسوت هغه (وی ون ګهت) Vivanghat دي چه په اوستا کي هم د یاما پلار بلل شوي او وروسته د اسمان درخشان رب النوع و. [۳]

وی ونګهت چه په اوستا کي د یاما پلار بلل کیږي[٤] هغه د عربو ونجهان یا ویون جهان دي[٥] چه د (ویونګهان) معرب رنګ دي، او یاما هم هغه د اوستا یما Yima دي چه وروسته جم او جمشید بلل شویدي.

خلاصه: د یاما او منو افسانې وروسته ډول ډول رنګونه موندلي دي، خو دلته زموکار د دوي تاریخي پلټنې ندي، بلکه فقط د منو د کلمې لغوي تطبیق دي چه د لوړو تاریخي پلټونو په رڼا کي به لاندي لږ څه شرح سي:

لکه چه وویل شوه پخپله ویدا (منو) د مطلق انسان او پوهیدونکي او منونکي په معنا راوړي، او منو شیا (پوهیدونکي او فکرکوونکي) هم انسان بولي[٦] ګویا د (م،ن) په طبیعت کي د انسان د پوهني او منني لپاره مفاهیم پټ پراته دي دغه د (منو) افسانې هر راز چه وي، خو صحت یا غلطي ئې دلته په موږ اړه نلري فقط د لغت لامله دوني ویلاي شو، چه (منو) د آریائیانو په اصطلاح د لومړي انسان نوم و، وروسته لکه د عربي (آدم) د انسان

سمي او مدني سړي بولي ښکاره ده چه (بر ماڼو) د لوړی مځکي سړی معنا لري یوه ملي لنډۍ ده:

د بر ماڼو په شان ترهیږي          د روغ ماڼو په شاني کښینه دید دي کړمه

یعني د وحشي او زنګلي په شان ولي لما څخه تره او نفرت کوې، د روغ انسان په ډول ګښینه، چه په لیدو دي ځان موړ کړم!

د دغه (م،ن) له ریښې څخه کټ مټ اوس (منل، منه) لرو چه په پخواني معنا دي د منونکي کټ مټ د منو معنا ده او هم په ظاهري شکل هم په معنا کي سره نژدې دي، ښائي چه د (منل) له ریښې څخه (منو او ماڼو) جوړ شوي وي او لکه دمخه چه ذکر شول (من) د ارادې په معنا هم له دغي ریښې څخه وي، چه منل او اراده کول ټول انساني خاصیتونه دي، او په معنا کي نژدیکت هم سره لري.

په هر صورت د منو د زړې کلمې د پښتو په ماڼو او منلوکي سته، او دا پخواني کلمه هم له دې ځایه تللې ده تر اوسه هم په پښتو اعلاموکي (منو) سته، چه پر سړو دا نوم ږدي.

### من Man

په دې ځای کي من د مخصوص وزني معیار په معنا هم باید راسي، د مخه مو من د ارادې په مفهوم تطبیق کړ، مګر من چه د تاله کاڼي دي، هم یوه خورا پخوانۍ کلمه ده، چه په ریګویدا کي داسي ذکر شوې ده: موږ له جواهر او ښاروي، او اسان او یو من سره زر راوړه.[1]

دا کلمه له آریائي خلقو څخه کلدان او سامي بابل ته هم تللې وه، ځکه چه هغو د هند سره پخواني تجارتي روابط درلودل نو ډیر داسي آریائي او هندي نومونه ئې وړي دي وروسته د من کلمه په روما او یونان کي هم رواج وه[2] دا وزني معیار تر اوسه هم په پښتو او پښتنو کي سته، او داسي مشهور دي چه دلیل او سند ته احتیاج نلري، حتي په پښتو کي د من له کلمې څخه یوه مخصوصه اصطلاح جوړه شوې او تقریباً یو رنګ اشتقاق ځیني شویدي،

وروسته هر دولت او هر ثروت او دارائي په دغه نامه بلله کیده لکه چه پخوانو د رومن خلقو هم "پیسو" یا "پکوس" pecus ثروت ته ویل، بیا چه مسکوکات په دوي کي رایج شول، هغه ئې هم پیکوس یا پیکو pecu بلل.[1]

ډنکن فوربس لیکي، چه پیسا paisa د یوې مسي سکې نوم هم دي چه زموږ نیم پنس ته نژدې ده عموماً د money معنا هم لري.

دا پخواني ویدي کلمه اوس به پښتو کي هم ژوندې او خورا مستعمله ده، توره او مسي ایکي ده، چه په پاړسو ئې پول بولي جمع ئې پیسې د عمومي ثروت او هم نقد مال په معنا راځي.

مثلاً احمد ډیري پیسې لري، دلته ئې معنا دا نده، چه ډیري توري ایکۍ لري، بلکه مقصد ډیر نقود او حتي عومي ثروت دي.

دا کلمه له ویدي عصره تر اوسه په دغو معناو ژوندۍ ده، په هند او افغنستان کي ډیره مشهوره وه، څو چه اوس ئې یوه بله نوې کلمه په ناوړه ډول په عوض کي ودریده "پول" چه نه تاریخي حیثیت لري، او نه ملي او قومي، بلکه په پښتو کي استعمال هم په جمله او جمع کي په ښه ډول نه کیږي، او د پښتو او پاړسو د "پل" له کلمې سره په جمع او جمله کي التباس هم مومي مثلاً پل پل پول که ئې جمع کړو د لومړي جمع پولونه راځي چه التباس سره لري نو ښائې چه پښتو "ایکي" یا پیسه د پول لپاره واخلو او پیسې تروت او نقد مال ته ووایو.

## کر، کریش Krish

د شدیار کولو او کرلو او زراعت مهم کارونه د آرئیانو سره له خورا پخوا څخه وه، لکه چه تاسي دمخه ولوستل، پخپله د (آریا) کلمه هم له دغي ریښې څخه را وتلې ده، (ک،ر) اساساً په آریائي ژبو کي عنصري توري دي چه په معنا کي قلبه، شدیاره، کرهڼه پراته دي، پخپله کرش په اوستا او ویدا کي راغلي، او شدیاره کول افاده کوي. گیگر وایي: کریش یوه کلمه ده چه ډیر ویدي اوستائې الفاظ ځیني جوړ شویدي، کرشتینه یا چرشتیه د آریائي قبیلو

# د آريائيانو اجتماعي تشکيلات

له ويدا او نورو پخوانو کتابو څخه ښکاري، چه پخوانو آريائيانو ځانته اجتماعي تشکيلات او د ژوندانه دودونه او د ټولني لپاره مخصوص سيستم درلود. اوس چه موږ گورو د پښتنو ژوندون هم کټ مټ هغه ډول او هغه پخواني رنگ لري او د پښتون والي په لياره او قوانينو کي هم دغه زاړه رسوم په ښه ډول پالل کيږي، پښتانه د ملي ژوندانه لپاره تل خپل اولسي تشکيلات محترم گڼي، کورنۍ، عشيره، کلي، لته، هيواد تر اوسه هم خاص مراتب لري ځکه چه دغه دودونه آريائيانو له پښتونخوا څخه وړي وه، نو ښائي چه زاړه نومونه ئې هم پښتو وي، چه لاندي هر يو جلا جلا ليکل کيږي، او پښتو والي ئې هم ښوول کيږي.

### پتي Pati

په ويدي ژبه کي دا کلمه ډيره مشهوره ده د بادار، مالک، رئيس، مشر معناوي لري مثلاً په هغه وخت کي ويس پتي vicpati د کلي د مشر نوم و.[1]

معلوميږي چه آريائيانو له پخوا زمانې څخه پخپلو اجتماعي تشکيلاتو کي دا نوم درلود، گوپت gopat يعني شپانه پاچا يو نوم و چه دا نوم او دغه اصطلاح آريائيانو تر بخدي او ويدي مدنيت دمخه هم درلوده په ۱۹۳۹ع د آمو شمالي خوا ته اوسني سمرقند ته نژدې په تل نبرو کي د دې پاچا تصاوير پيدا شويدي او دارمستر وائي چه په آريانا ويجه کي د آريائيانو پاچا دغه و، د اوستا په گويشت او بنداهش کي هم د گوپت ذکر کيږي[2] مقصد دا دي چه بت کلمه خورا قديمه او د آريائيانو د بخدي تر راتگ هم دمخه د دوی په اصلي ټک (آريانا ويجه) کي هم وه.

په سنسکریت کي هم پت او پتي مستعمل دي، او ډېر کلمات د (پ،ت) د ریښې څخه را وتلي دي، مثلاً پیت pit مینه، عاطفه، پیتا pita پلار، پیتم pitam ډېر مینه ور، ډېر گران او خوږ، پت pat ښه، عزت، اخلاق پت یا پتي مالک، بادار، څښتن، میړه، پتا pata پلار.[1]

دا مفاهیم او معاني چه د (پ، ت) په مشتقاتو کي پراته دي، ټول سره نژدې دي او ښائي چه ځني حقایق وي، وا ځني مجازونه، په پښتو کي هم دا کلمې پت pat او پتي pati دواړي مستعلمي دي، پت د عزت او غیرت او ناموس او ننگ معناوي لري. مثلاً حمید وایي:

پروت په وینو کي لټ پټ ښه یم په پت کي　　　　نه سرو زور په تخت باندي بې پته

عبدالقادر خان وایي:

په یاري به هاله صادق باله شي　　　　چه تر مرگه د یاري پت وپالي

دغسي پتي یعني د بت خاوند هم په پښتو کي سته، مثلاً ډېر پتي دي یعني د پت خاوند دي، بې پتي یعني پت نه درلودل، او بې غیرتي، او بې ننگي.

پیر محمد میاجي وایي:

داسي ووې شیخ متي　　　　د مولا په عشق پتي[2]

نو قدیم پتي هم دغه اوسني پښتو پتي او پت ته ډېر نژدې دي، ښائي چه مشر او بادار او پاچا ئې له دې جهته پتي باله، چه په دوي د اولس پت خوندي وو، او دوي ننگیالي وو، او عزت او ناموس او ننگ ئې ساته، او ورستنۍ معناوي چه د مالک، بادار، څښتن، میړه په ډولو راغلي دي، د زمانو له تیریدلو سره مجازاً خپرې شوي وي، مثلاً هر مالک او بادار او څښتن د خپل مملوک او مادون پتي دي، ځکه عزت او ناموس ئې ساتي، ننگه ئې پر ځاي کوي، دغسي هم میړه تل د ماینې ناموس ساتي نو ئې ځکه پتي دي.

کړې خدایه" دغسي هم په ویدا کي د پخوانو ریشیانو ډېر اشعار او سرودونه سته، مثلاً خدای د ژوندانه ښتن دي، دي د دولت خاوند دي، دي قوي او غښتلې کورنۍ ورکوي، اې ښتنه! موږ داسي مه کوې چه بې کورنۍ او اولاده پاته شو.[۱] په ویدي ژبه کورنۍ او خاندان ته، کولا kula وائي چه د هغه عصر په اجتماعي تشکیلاتو کي ډېر اهمیت لري او له کورنۍ څخه نور لوړ تشکیلات شروع کیږي.

دا کلمه یقیناً د آریا له زانګو او اصلي ټکه، یعني زموږ له هیواده تللې ده او تر اوسه هم زموږ په ژبه کي ژوندۍ او مستعمله ده.

په پښتو اوس موږ کورني او خاندان ته کهول وایو: د قندهار مشهورو مشرانو کهولونه تر اوسه مشهور دي محمد زي (د پاینده کهول) بولي یعني د سردار پاینده خان خاندان، دغسي دي د اڅک کهول، د بارک کهول موږ په محاوره کي وایو، کاله ته ځم، له کاله راغلم، دلته ئې (هـ) حذفیږي، شیخ رضي لودي چه د ٤٠٠ هـ په حدود کي ژوندي ؤ هسي وائي:

نصره نه مو یې له کهاله لودي نه بې په کاوه

د ده تربور نصر لودي وائي:

د لودي زوي سنتې یم[۲] د حمید له لوړ کاله یم

د پښتو د خورا پخواني شاعر امیر کروړ په یوه شعر کي دا کلمه (کول) راغلې ده: "په باداري مي لوړاوي د کول د سور وکړه" یعني د سور د کورنۍ، چه دغه کلمه کټ مټ د سلیمان ماکو په تذکره کي هم کول کښلي شوي، او ویدي رنګ لري،[۳] له دې څخه ښکاري چه خورا په قدیمو زمانو او بیا د اسلامي دورې به اوائلو کي هم دا کلمه لکه چه اوس ژوندۍ ده، مستعمله وه.

**ګرامه Grama**

gramani د کلي یوه کورنۍ، گرمیاسوه gramyasva د کلي آس یعني خر، گرامین gramin کلیوال[1] او نور. چه دغه ټول اشکال اوس هم پښتو ته نژدې دي مثلاً گرامواسي (گرام اوسي)، گرام ادهي پتي (گرام اډې پتي)، گرامیاسوه دگرام اسپه اوگرامین لکه خاورین اوس هم په پښتو هغه معاني لري. دگرام کلمه تر اوسه هم کټ مټ په دغه ډول په پښتو کي مستعمله ده په مشرقي خوا او په نورستان کي هم اکثرکلي په دغه نامه دي مثلاً وډي گرام، لوي گرام، شگرام، بشگرام، کول گرام، اشترگرام او نور. د بگرام نوم هم دغه ریښه لري، یو بگرام د کابل په شمالي خوا کي دي، بل پیښور د بگرام په نامه یادیدي. شیدا وائي:

تر هغه پوري بگرامه[2]		په جهان مشې بې نامه

بگرام دکابل او جلال آباد په منځ کي یو موقف دي، چه په نامه کي دغه ریښه سته. پخپله دا کلمه د (گرام) په ډول هم په پښتو کي وه او داسي معلومیږي، چه زموږ له هیواده تللې او په ویدي ژبه کي ځاي نیولي دي یوه پښتو لنډۍ ده:

د بیلتانه سندري اورم		جانان له گرامه سهارکډې باروینه

**ویسه ویس Visa'vic**

دا کلمه بیله هغه (ویسیا یا ویش) چه دمخه په آریائي څلورو ډلو کي ذکر شوه، ځانته مستقله کلمه ده ترگرام لوړه په اجتماعي تشکیلاتو کي ویسه وه چه د څو گرامو وگړي به یوه ویسه بلله کیده، او مشر ئې ویس پتي، vispati یا راجن rajan باله.[3]

گایگر الماني لیکي: چه (ویس) په اوستائي دوره کي هم کلي ته ویل کیدې، هم یوې قبیلي ته چه څو کورنۍ ئې درلودې او د اوستا vis د سنسکریت له vic سره یو دي چه په ریگویدا کي د کور، کورني، ټبر معاني لري.[4]

داسي معلومیږي چه د (و،ی، س) په طبیعت کي د سکونت او هستیدلو معاني پراته دي، مثلا د ویدا او اوستا

### پور Pur

دکتور کیت Keith د دې کلمې شرح داسي لیکي چه د پخوانو هندي بومي اقوامو له مدنیت څخه موږ څه معلومات نه لرو فقط دونه ښکاري چه دوي د غویو لویي گلې درلودې او په داسي سنگرو او محکمو ځایو کي ژوند کاوه چه له ډبرو څخه ئې جوړ کړي وه. ریگویدا دغه ځایونه پور pur بولي چه وروسته دا کلمه د ښار town په مفهوم هم مستعمله شوه.[1]

ډونکن فوربس وایي چه په سنسکریت کي هم پور د ښار او کلي، کامپ camp یعني د پاچا د ناستي د ځاي kingston په معنا وه.[2]

لکه دمخه چه وویل شوه، د ډیرو گرامو او کلو کوړه (ویسه) بلله کیده د ویسي مشر ویسپتي و، ده به یو ټینگ او محکم ځاي درلود، چه په اوسنۍ اصطلاح ئې موږ ارک بولو او دوي پور باله.

دا کلمه په پښتونخوا کي دونه مشهوره ده چه ډیر ځایونه اوس هم پور بولي مثلاً بټه پور، سلطان پور، فتح پور چه په ننگرهار کي دي په هند کي هم ډیر ښارونه به دې نامه دي مثلاً بهاول پور، بیجا پور، رام پور او نور.

اعلیحضرت امیر شیر علي خان چه د کابل شمالي خوا ته نوي عسکري ځاي بنا کړ شیر پور ئې وباله چه تر اوسه هم په دغه نامه مشهور دي. په پښتو کي به مفرد ډول دا کلمه د پوړ په شکل پاته ده، پوړ طبقې ته وایي مثلاً دري پوړه وداني یا پوړ پر پوړ یعني طبقه پر طبقه.

دا موجوده معنا هم هغي پخواني ته نږدې ده ځکه چه هر پوړ محکم او ټینگ وي او پخوانو کلاو او ارگو پوړونه هم درلوده چه آثار ئې تر اوسه سته.

### سمیتي Samiti

دمخه تاسي د سمهیتا په بحث کي ولوستل چه معني ئې مجموعه ده او د پښتو سمت هم نژدې دغه معنا لري.

په ریګویدا کې د دې جرګې بحث راغلي دي[1] او علما وايي چه دوی دوې جرګې درلودې يوه ئې سبها sabha بلله او بله سميتي، په سميتي کې سپين ږيري او د قبيلې مشران سره غونډېدل او دا عمومي جرګه وه اما سبها د کلي وړه جرګه وه او مقامي رنګ ئې درلود، په سميتي کي پاچا هم شامليده او د پاچا او مشر د ټاکلو هم حق د دکتور زيمر Zimmer په قول دې جرګې درلود.[2] په ويدي ژبه د سمهيتا او سميتي کلمو په معنا کې د ټولني اجتماعي مفاهيم پراته دي. ګويا د دې مفهوم لپاره (س، م، ت) عنصري حروف دي، په هندي ژبو کې هم دغه ريښې په ډيرو کلماتو کې په دغه مفهوم سته مثلاً سمت simat د توليدلو عمل، سميت semet يو له بله سره ټول، ور سره، سميتنا samitna يو له بله سره ټولول او سره غونډول.[3]

لکه چه دمخه ويل شوې دي د پښتو سمت هم کټ مټ دغه شکل او مفهوم لري، ځکه چه په سميتي (جرګه) کي هم د ټولني او غونډېدو مفهوم لري، نو ليري نده چه دغه ټول کلمات له دغي ريښې څخه وي.

**ناچ**

رقص او اتڼ د انسان له فطري خصايصو څخه دي په پخوانو اقوامو کي هم و، له ريګويدا څخه ښکاره کيږي، چه آريائيانو هم اتڼونه درلوده، او لکه اوس چه د پښتنو زلمي اتڼونه کوي او ځوني غوړوي، پخوا هم دوي دغسي اتڼ درلود او دا اجتماعي دود پکښې موجود و.[4]

په سنسکريت کي اتن ناچ بولي او دا کلمه تر اوسه هم په هند کي پر رقص dance اطلاقيږي[5] په پښتو کي د دي فعل لپاره د اتڼ مخصوصه کلمه سته مګر د ناچ او رقص د فعل لپاره له هغې قديمي ريښې څخه نڅا او نڅل هم لرو فقط (چ) په (څ) بدله شوې ده، له دغه مصدره افعال هم جوړيږي مثلاً ناڅي، و به ناڅي، و ئې نڅل، يو شاعر وائي:

لکه ناڅي چه بسمل له تيره تيغه      چه به تيغ دي شوم کرم نو نڅا راغله

دا کلمه په ريگويدا کي ډېره راځي او د يوې ميلې نوم و چه په ارت ميدان کي به کيده او ټول طبقات، ښځي او نر، گوچني، لويان گرد پکښي حاضريدل.

غيږ بازانو به غيږي ايستي، ورزشکارانو به لوبي کولې،سپرو به هم خپل هنر ښکاره کاوه ريښيانو به اشعار ويل. دا ميلې به کله د شپې کله د ورځي اجرا کيدې، او د مظاهرې او نمايش عمليات به کيدل.[1]

دا ميلې تر اوسه په قندهار او نورو ښارو کي سته، په پسرلي په مني په ژمي مخصوص ځايونه لري او خلق پکښي ټوليږي، په مياشتو مياشتو دوام کوي، لکه پخپله ميلې چه پاته دي، نوم ئې هم په پښتو کي پاته دي مگر لږ څه معنوي تحول ور پيښ شويدي.

په قندهار کي سامانه تظاهر، نمايش په فخر سره څرگندوني ته وائي، مثلاً فلاني ساماني کوي، يعني تظاهر او نمايش کوي، او ځان ښکاره کوي، سامانه گر متظاهر او نمايشي سړي ته وايي، په سامانو تلل، يعني په کبر او خود نمائي تلل، مثلاً يو شاعر وائي:"راغي ابو جهل کافر نبي ته په سامان" دا لږ معنوي تحول علت هم لري ځکه چه د آريائيانو ميلې هم د تظاهر او نمايش او سامانو ځايونه وه، هلته قوت، هنر، حسن، جمال ټول خلقو ښکاره کول، حتي پيغلو ميرونه هم هلته ټاکل، زلمو به ځانونه سينگارول، گويا دا ميله هم په حقيقت کي يو نمايش، او په دغه اوسنۍ معنا "سامانه" وه چه اوس هغه د ميلې مفهوم له دې کلمې څخه تللي، او فقط هغه اصلي مقصد يعني "نمايش او تظاهر" پکښي پاته شوي دي. ځکه چه سامانه له آريائي اجتماعي مظاهرو څخه وه، نو تر اجتماعي تشکيلاتو لاندي راوړله شوه.

# ارباب انواع

د پخوانو آريائيانو له ژبې څخه ځيني مهم نومونه د دوی ارباب انواعو دي چه دلته ئې له لغوي پلوه مور له

په دې نامه آريائيانو يو رب النوع ستايه چه د آسمان او رڼا رب النوع ئې ګاڼه او ټول نوراني او مفيد عناصر ئې ده ته منسوبوله. د دې نامه اصلي ماده ديو ده چه عنصر ئې له (ډ، ي، و) څخه مرکب دي، او دا ماده او اصل د "ځليدلو او رڼيدلو" مفهوم له ځانه سره لري، دا ماده په آريائي ژبو کي دوني عامه ده، چه اکثرو قديمو اقوامو له دغي مادې څخه د خداي تعلي نوم جوړ کړي دي مثلاً پخپله هندي آريائيان لوي خداي جل شانه ډييوس پاتر Dyeus-Pater بولي يعني لوي او اعظم.[١]

په سنسکريت کي ډيوا، ډيواس د لمر او رڼا په معناؤ دي، او خورا ډيري کلمې له دغه ريښې څخه په هغه ژبه کي را وتلي دي، لکه چه ډنکن فوربس ليکي: ويدي ماده ئې ډيا Diya ؤ د څراغ په معنا.[٢]

وګوري دغه کلمه په يوناني کي ذيوش Zeus او بيا زيوش، زيوس سوه، د لاتين ډووس او ډيوفيس او جوفيس او جو پټير هم له دغي کورني څخه دي، په زړه الماني ژبه کي ذيو او په اسلاوي کي ډيواس، په ايتالوي کي ډيو د پرتګالي او هسپانوي ډيوس ټول له دغي ريښې څخه را وتلي اسما دي په نورو نوو ژبو کي ډيوډيوس، او ډيو هم پدغه ريښه اړه لري ډيويس Dious او ډيواين divine هم له دې کهوله دي.[٣]

په پښتو کي تر اوسه څراغ ډيوه divah بولو او دا کلمه دوني شهرت لري چه له پخوانو زمانو څخه تر اوسه په دې ژبه که ژوندي پاته ده، او سړي په ټينګه ويلاي سي، چه هم هندي او هم نورو آريائي ملتو دا کلمه له دې مځکي څخه وړې ده.

لکه چه ومولوستل: ډييوس اسماني رب النوع و، او په دغه تقريب دا نوم ټولو آريائي مللو د خداي تعالي لپاره غوره کړي و، ځکه چه رڼا له اسمانه څخه وه، نو ګويا ډييوس آسمان وو، چه په مقابل کي يې د دې رب النوع د مځکي بل رب النوع هم موجود و. که د ډييوس کلمه تحليل کړو، پښتو کلمه ډيوه به واخلو چه د چراغ او رڼا معنا لري، او د نسبت ادات (يز) به ورسره ونښلوو ډيويز Dyvis به سي، يعني رڼا وال، منور، د چراغو ډک، چه عيناً د آسمان ظاهري شکل هم دغه دي. او ډيوس Dyaus او ډيويز هم ډير سره نژدې دي، ډيوه په پښتو ادب کي ډيره

دلته معشوقه له مين سره د شپې وصل شوي ده، نو نه غواړي چه ژر سهار سي او لمر را وخيژي، نو آسمان ته خطاب کوي چه اې د څراغ او رڼا خاوند آسمانه! که به لمر ژر را خيژوې نو دي سترگي ووزه!

دغه ډيويز چه د آسمان د صفت په ډول راغلي دي، کټ مټ د هغو ټولو آريائي نومو ماخذ گڼل کيږي، چه دمخه تير شول.

### پريتهي وي Prithivi او نور

په ريگويدا کي د ډيوس په مقابل کي تل پرتيهي وي يعني مځکه راځي، دا هم د يو رب النوع نوم و[1] په سنسکريت کي پرتهوي prithvi د مځکي معنا لري او ډير کلمات نور هم له دي مادي څخه جوړ شوي دي، ځکه چه مځکه پرته او غوړيدلې ده، نو ښائي چه دا نوم د پښتو له (پروت مذکر، پرته مونث) سره شريک وي، ځکه چه د کلماتو ماده (پ، ر، ت) دي پريتهي او پرتهوي او پروت ډير سره نژدې دي.

راگوزن ليکي، چه په ويدي ادب کي د پروت لغوي معنا خپريدنه او پروتوالي دي، او اوريځي او غره ته هم له دې جهته پروت وايي، چه خپاره او پراته وي، پرجاينه هم په ريگويدا کي د اوريځي نوم دي چه د پروت له مادې څخه ئې نوم را وتلي دي، د اروپا آريائيانو هم له دې رب النوع سره ډيره دلچسپي درلوده. سلاو او ليتواني اقوامو ئې تر ډيرو مسيحي کلو پوري لا هم پرستش کاوه، نومونه ئې له دغي مادې څخه مشتق دي، مثلاً پرکوناس، پرکونس، پيټرون (اوريځ).[2] دا شرح چه ولوسته سي نو د سړي يقين راځي چه پريتهي وي، پرتهوي پروت، او د پښتو پروت له يوې ريښې څخه دي.

دغسي هم ماروت Marut د باد او سيلۍ رب النوع و، چه اوس دا نوم د مروت به شکل موجود او د ببنتو د يوې قبيلي نوم دي.

دغسي هم د سوما ذکر چه دمخه راغي، دا هم يو رب النوع و چه په پښتو کي د نامه ريښې تر اوسه سته. په

# څلرمه برخه

## پښتو او د اوستا ژبه (زند)

اوستا ژبه۔ باختري اوستا او نوې اوستا۔ د اوستا ټوکونه۔اوسني اوستا
په پښتوکي د اوستا ژوندی کلمات۔ په پښتوکي اوستا۔ زرا تشترا۔ سپنتمان -
اهورا مزدا۔ واره - بامي۔ اسپه۔ کاوه۔ د ځایو نومونه۔ مانده - راغه -
سپین غر۔ د ځینو وسلو نومونه۔ عمومي مشابهت او نزدیوالي۔ د تطبیق جدول

# پښتو او اوستا

## لومړۍ خبري

لکه چه دمخه وویل شوه، اوستا ژبه هم لکه سنسکریت له آریائي پخوانو ژبو څخه ده، او د پښتو له ادبي تاریخ سره ډېره اړه لري.

اوستا د آریائي باختر او بخدي یوه زړه ژبه ده، چه موږ ئې د پښتو سره ډېر کلمات او لغات مشترک مومو، او لکه د پښتو رابطه چه د سنسکریت سره ټینګه وه، د اوستا سره هم دغسي کلکه اړه لري.

په حقیقت کي دا درې ژبي (سنسکریت، اوستا، پښتو) سره خوندي دي، او په یوه هیواد کي زیږیدلي او تربیه شوي دي، سنسکریت د هند په ارتو ورشوګانو کي خپره شوې، او اوستا په باختر کي ځوانۍ ته رسیدلې ده، پښتو د پښتنو او پکهت سره یو ځاي، پخپلو غرو کي تر اوسه ژوندۍ پاته ده.

د پښتو د ادبي تاریخ د څرګندولو او قدامت له پاره موږ نا ځاره یو، چه پښتو له اوستا سره هم پر تله کړو، او په هغو اصولو چه د سنسکریت سره مو مقایسه کړې وه، (دریمه برخه) اوس ئې په دې برخه کي د اوستا سره اوږه په اوږه ودروو.

د دې له پاره چه تاسي ته د اوستا تاریخي کیفیت لږ څه معلوم سي، او هم ئې ادبي آثار وپیژنئ، لومړی به د سنسکریت په ډول په خورا لنډو کرښو کي تاسي ته د دې ژبي تاریخ او بیا ادبي آثار در وښیم بیا به نو په اصلي مقصد یعني مقایسوي څیړنه پیل وکړم.

لکه په دریمه برخه کي چه فقط د سنسکریت ځیني مشهور او خورا مهم کلمات په پښتو کي پلټل کیده دغسي به د اوستا د لغاتو او مهمو کلماتو پلټنه او پر تله وکړو.

اما د قواعدو او د ژبي د اصولو مقایسه او تطبیق به په یوه بیله برخه که وسي، دلته فقط لغوي او ژبنۍ څیړنه د لغت او کلمهٔ سازۍ له روهه کیږي.

ساساني ۲۱۲-۲۲۶ع په امر اوستا را غونډه سوه نو له دغه جهته اوس د اوستا زوړ متن ندي پاته، فقط د ګاته برخه ئې زړه او د زرتشت قول بلله کیږي.[۱]

دا ژبه اوستا بلله کیږي، چه شرح ئې وروسته راغې، په حقیقت کي زند Zend د اوستا کتاب پهلوي شرح وه چه وروسته دا دوه نومونه په ګډه "زند اوستا" د متن پر اصلي ژبه اطلاق شوه، که نه وي پخپله زند د اوستا د تفسير ژبه یعني پهلوي ده.[۲]

د پهلوي تفسير یو بل تفسير هم درلود چه هغه (پیتي زینتي) یعني مکرر تشریح یا پازند بولي، د دی تفسیر التفسیر ابهام تر پلهوي لږ دي، او هم ئې رسم الخط نسبتاً واضح دي یا زند له پهلوي څخه لږ څه بیلتون لري او ټول کتب چه پکښي موجود دي د پهلوي نسخو تفاسیر او شروح دي.[۳]

له دې ملاحظاتو څخه داسي ښکاري، چه لومړني اوستا چه د زرتشت د عصر ژبه وه، او د اوستا کتاب په کښل شوي وو ورو ورو له باختره شا و خوا خپره شوه، په ایران کي زړه پاړسو (فرس قدیم) رواج شوه، وروسته پهلوي ژبه او پازند ځیني را ووتې، نو په حقیقت کي اوس د زړې باختري اوستایي ژبي آثار ندي پاته. ګاته چه د اوستا یو ټوک دي د محققینو په قول هغي زړې باختري اوستا ته نژدې دي.

## باختري اوستا او نوې اوستا

باختري اوستا هغه کتاب وو، چه زرتشت په بخدي کي وکیښ او د هغه وخت باختري پاچا ګشتاسپ د ده دین ومانه او ټول د زردست قوانین ئې د غویو پر څرمن وکښل، او هري خوا ته ئې ولیږل.

یو پخواني مورخ پلینیوس Plinius د هرمپوس له کتابه په لومړي میلادي قرن کي داسي لیکي چه لومړني اوستا دوه ملیونه اشعاره وه، مسعودي عربي مورخ تر ۳۴۶هـ دمخه په مروج الذهب کي هسي لیکي: چه اوستا پر دوولسو زرو د غویو څرمنو باندي لیکلې وه ، محمد جریر طبري متوفي ۳۱۰ هـ وایي: چه اوستا پر دوولسو زرو د

دي، يعني هغه اوستا چه په ساساني دوره کي تر اسکندر وروسته ټوله شوې وه، بيا هم په اسلامي دوره کي تلف سو، او اوس ئې فقط يوه ربع پاته ده.[1]

له دې بيانه هسي ښکاري چه د اوستا کتاب ډيري صدمې ليدلي، او څو واره له منځه وتلي او بيا سره ټول شوي دي، او ډير نوي نوي مضامين وروسته هم پکښي داخل شوي دي، يعني دا يو کتاب دي چه پر پخواني حالت ندي پاته. ډارمسټټر فرانسوي عالم ډيري برهمني او پهلوي او او بودائي او يوناني اغيزې او عناصر په اوستا کي ښيئي[2] نو لکه د مضمون او محتوياتو له پلوه چه اوستا سره اوښتې او نوي مواد په ګډ شوي دي، دغسي هم د ژبي له خوا د زړې باختري اوستائي نمايندګي نيسي کولاي، او دا يو محرف کتاب دي، چه اوس ئې لږ برخي په نوي شکل پاته دي.

## د استا ټوکونه

د ساسانياونو په دوره کي له ۲۱۱ع تر ٦۲۹ع پوري چه زرتشتي دين رسمي ګڼل کيدي ټول د اوستا کتاب ۲۱ نسکه (کتابه) و چه د دينکرد[3] په اتم او نهم فصل کي تفصيل راغلي دي، نسک په اوستا کي نسکو ذکر شوي او معني ئې دفتر او جنګ او مجموعه ده.[4]

دغه يويشت نسکه پر درې برخي ويشل کيږي چه هره برخه ئې اوه نسکه ده، لومړي برخه ئې ګاتها Gatha يا ګاسان Gasan بولي چه د عبادت مسايل او مذهبي اصول دي، دوهمه برخه ئې دات Dat بولي چه خاصه ده په اجتماعي او معاشرتي قوأنينو پوري، دريمه برخه يې هدهه ماتهرا Hadha-mathra ده چه الهيات او فلسفه او ګډوډ بحثونه دي.[5]

اوس به د دغو درو ټوکو اجزاء او برخي هم در وښيو:

۲- سوتکر Sutkar

۳- ورست مانسر Varst-mansar

٤- بک Bak

٥- وستک Vastak

٦- هاد هوخت Hadhokht

۷- سپند Spand

له دغو څخه سوتکر او ورست مانسر او بک هر یو ۲۲ برخې لري چه د لومړۍ قسم د ۲۲ منظمو برخو پر ډول منظومي سندري دي او د هغو شرح او تفسیر ګڼل کیږي، او اوس له دغو څخه فقط د سوتکر یو څو قطعي او د ورست مانسر یوه برخه زموږ په لاس کي ده دغسي هم د بک درې برخې په یسنا ګډې دي.

د وستک څخه اوس هیڅ پاته نه دي، او نه د ینکرد د دغه شرح کوي، نه ئې اصلي نسخه او نه ئې پهلوي شرح سته، اما له هاد هوخت څخه درې برخې پاتې دي، چه په یسنا کي شمیرلي کیږي او یوه بله برخه ئې هم په یسنا کي ګډه او درج ده. اومه برخه یعني سپند د زردشت کیسه ده، چه په نوي ډول "زردست نامه" بلله کیږي او د ده د ژوندانه کیسې پکښې دي.[1]

**داتDat**

دوهمه برخه نسکونه چه دات Dat ئې بولي، او قانوني او شرعي مباحث لري، دغه لاندي اوه برخې لري:

۱- ینکاتوم Nikatum

۲- ګندا سرنیګت Ganda-sar-nigat

۳- هوسپارم Husparam

٤- سکاتوم Sakatum

شپږمه برخه کتردات د خلقت له ابتداء څخه تر زر تشته پوري تاریخي ابحاث لري، او اوس دغه برخه په بندهش Bundahis او شهنامه کي ساتلې ده.

اومه برخه چه بکان یشت نومیږي، ځیني مناجاتونه او دعاوي دي، چه د ارباب انواعو په نامه وې. او له دغو څخه ۱٦ ټوټې په هوم یشت او سروش یشت کي سته.[1]

هدهه ماتهرا Hadha mathra

دریمه برخه نسکونه چه هدهه ماتهرا نومیږي، نه ښه پېژندل شوي، او نه ښه ساتلې شوې دي، دغه برخه هم اوه څپرکي لري:



۱- دامدات Damdat

۲- ناتر Natar

۳- پاګګ Pagag

٤- رت دات ایتګ Rat-dat-itag

٥- بریس Baris

٦- کش کیشرو Kaskisrav

۷- ویشتاسپ ساست Vistasp sast

دامدات د زرتشتیانو د خلقت او د پیدایښت احوال و، د بندهش د پیدایښت او خلقت بیان له دغي برخي څخه دي، د ناتر په حال هیڅ نه یو خبر، او نه دینکرد له دغه څخه بحث کوي، له پاګګ څخه په ګاه او سي روزه Siroza کي یو څه برخه پاته ده، او د وختو ابحاث ئې درلوده، رت دات ایتګ Rat-dat-itag د قربانیو ترتیبات ښوول، او دوې قطعې ئې اوس سته.

اما پنځمه او شپږمه حصه د هغو قربانیو په بیان کي وه چه د ناوړو او جناتو د اضرارو جلوګیري ئې کوله، له

اما د څلورو نورو نسکو (۱- بک، ۲- هاد هوخت، ۳ ویشتاسپ ساست، ٤- هوسپارم) څخه هم غوره برخي پاته دي او له نورو څخه لږ لږ.

دغسي هم دارمستتر وايې چه په غير مرتب او غير مستقيم ډول له پهلوي شرحو څخه موږ ته د اوستا دور کونسکو محتويات معلوميږي او د پنځلسو نسکو لږ يا ډيري نمونې او نسخې زموږ څخه سته.

ويست West انګليس اوستا پوهاند، د اوستا ټول ۲۱ نسکونه ۳٤۷،۰۰۰ لفظه بولي، چه اوس فقط ۸۳۰۰ الفاظ يعني څلورمه برخه پاته او نور محو شوي دي.[۱]

**اوسنۍ اوستا**

دا لوړ تقسيم چه په اوستا کي شوي دي، لکه تاسي چه وويل د پهلوي د دنيکر دله کتابه معلوميږي، چه پخوا ئې دغه اجزاء درلودل، اما اوس د اوستا کتاب پر دغو پنځو ټوکو باندي مشتمل دي.[۲]

۱ يسنا Yasna چه د کلمې معنا ئې پرستش، نمنځنه، لمونځ او جشن دي په سنسکريت کي دا کلمه يحبنه، په پلهوي کي نيرشن، په پاړسو جشن ده، دا ټوک ټولي هغه سندري دي چه د مذهبي مراسمو پر وخت ويلي کيږي، او ۷۲ فصله لري چه له دغو څخه ۱۷ فصله د هغه پخوا ګاتها څخه دي.

۲- ويسپريد Vispered يعني سروران دا برخه هم مستقل کتاب ندي بلکه په لومړي برخه اړه لري، د مذهبي دعاو او اورادو مجموعه ده، چه د يسنا سره يو ځاي ويل کيږي او له ۲۳ څخه تر ۲۷ پوري فصلونه لري.

۳- ويندیداد Vendidad يعني د شياطينو دافع قانون، چه په دغه کتاب کي د اوداسه آداب او د استغفار او توبې اصول بيان شوي ديني قوانين او احکام لري، دا کتاب ټول ۲۲ فرګرد يعني بابونه لري.

٤- يشت Yasht يعني نيانش او لمونځ چه د کلمې ريښه په هغه يسنا کي ده، دا يو ډول سندري دي، چه د خدايتعالي او پريښتو ستاينه ده، يشتونه ټول ۲۱ دي.

او شرح خپاره کړل، وروسته په دې علم کي ډېر نوموړي پوهان منځ ته راغله، چه دي ساسي، اوګروټ فنټ، رولنسن، بارتولومه، ميه، لاسن، اسپيګل، ګيګر، ډارمستټر، ګيلډنر، ملر، له دغي جملې څخه دي او دغو پوهانو په المان او فرانسه کي ډېر کتب د اوستا په خصوص کي وکښل او خپاره ئې کړه.[1]

# په پښتو کي د اوستا ژوندي کلمات

اوس چه تاسي ته لږ څه د اوستا شرح معلومه سوه، نو به خپل اصلي مقصد ته ولاړ سو، د اوستا يو څو مشهور لغتونه به د پښتو سره تطبيق کړو.

دمخه د ويدا په بحث کي تاسي ته د تطبيق اصول معلوم سوه، هغه تحليلي قواعد دلته هم جاري دي او زموږ د چاري اساس يو دي. دلته چه موږ د اوستا ځني کلمات د پښتو له پلوه تحليل کوو، فقط د مثال په ډول يو څو هغه کلمات را اخلو چه په اوستا کي ډېر مشهور دي که نه وي، د ټولي ژبي تطبيق او مقايسه بيل کتاب غواړي او د پښتو د ادبي تاريخ وظيفه هم نده.

**د اوستا کلمه**

تر هر څه دمخه به پخپله د اوستا نوم تر تحليل لاندي راولو، دمخه در ښکاره شوې ده، چه دا کلمه ډېره زړه ده او د آريائي باختر له پخوانو آثارو څخه ده.

د دې کلمې په معنا او لغوي تحليل کي پوهان ډلي ډلي دي، هر چا يوه توجيه ورته کړيده او اشکال ئې هم مختلف را نقل شويدي، اوستا، ايستا، استا وستا، افستا، اپستا. د پهلوي شکل ئې اويستاک دي، چه ډارمستتر اپستاک ضبط کړيدي، په سرياني ژبه اپستاګا او په عربي کي ابستاق دي او لکه محققين چه وايي: د دې نامه ذکر

۱- پروفيسور گلدنر Goldner له پروفسور اندراس څخه هسي نقل کوي چه د اوستا کلمه له پهلوي اوپستا upasta څخه مشتقه ده، چه معنا ئې "اساس، بنيان او اصلي متن" ده، پروفيسور بارتولد او ويسباخ Weissbach دغه کلمه په اوستا او هخامنشي ډبر ليک کي د "پناه او کومک" په معناو راوړي.[۱]

۲- يو بل مشهور عالم جيکسن Jackson د نيو يارک د کولمبيا کالج پروفيسر هسي وايي چه د اوستا Avesta اصطلاح له اوستاک Avistak څخه را وتلې ده، چه دا کلمه په ساساني دوره کي عموماً مستعمله وه، مگر دا نده معلومه چه اصلي معنا ئې څه ده؟ ښايي چه پهلوي اوستاک لکه د سنسکريت ويدا غوندي د "پوهني، دانش، او علم" په معنا وي يا ښائي چه معنا ئې اصلي متن the original text وي يا قانون.[۲]

۳- په شرقي کتابو او قاموسو کي هم اوستا راوړي، مثلاً د دساتير آسماني په فرهنگ کي ليکي "اوستا بفتح اول و ثاني نام کتابيکه بر حضرت زرتشت نازل شده و معني آن بهين ستايش و مهين نيايش، وستا بکسر اول مخفف اوستاست"[۳]

فرهنگ نظام ليکي: اوستا کتاب ديني زرتشت پيغمبر ايران است اسيري لاهيجي گويد: "علم معني از کتاب اوستا حاصلت نايد مکش چندين عنا". اسدي طوسي په لغت فرس کي ليکي استا، وستا، ابستا، تفسير زند است، خسرواني گفت:

چو گلبن ازگل آتش نهاد و عکس افگند بشاخ او بر، دراج گشت ابستا خوان

٤- آپرت Oppert هسې ليکي: چه د اوستا کلمه اساساً له آبستا abasta پارسي کلمې څخه جوړه شويده چه معنا ئې قانون دي.[٤]

٥- ځني نور پوهان دا عقيده لري چه اوستا د مجهول او نا مفهوم معنا لري، او دوې ټوټې کلمه ده لومړۍ ټوټه "آ" يعني "نه" دوهمه ټوټه "ويستا" يعني دانسته ده چه مرکباً "نامفهوم او مجهول، او نا دانسته" ورته وايي.[٥] او د دي نامه وجه تسميه، هم داسې بيانوي چه اصلي باختري اوستا دوې نسخې وې او دغه نسخې هم د اسکندر په

## په پښتوکي اوستا

د اوستا دکلمې په شرح او مفهوم کي د پوهانو له مفکورو څخه لوړي څېړني مختصراً را نقل شوې، په پښتو کي هم داکلمه تطبيق مومي، او لکه د ويدي ژبي ډېرکلمات چه په پښتوکي وکتل سوه داکلمه هم له پښتو سره په دوه ډوله برابريږي.[1] د پنځمي مفکورې خاوندانو اوستا په نامفهوم ترجمه کړيده، او دا نظريه اسلامي مؤرخينو هم منلې ده، مثلا علي بن الحسين مسعودي مشهور اسلامي مورخ چه په ۳٤٦هـ وفات شويدي په ۳۳۲هـ کال هسي ليکي:

"زرادشت بن استيمان و هونبي المجوس الذى اتاهم بالکتاب المعروف بالز مزمه عند عوام الناس واسمه عنالمجوس بستاه... و معجم هذا الکتاب يدور علي ستين حروفا من احرف العجم، و ليس في ساير اللغات اکثر حروفا من هذا واتي زردشت بکتابهم هذا بلغتهٔ يعجزون عن ايراد مثلها، و لايدرکون کنه مرادها... وکتب هذا الکتاب في اثني عشر الف مجلد بالذهب فيه وعدو و عيد و امرونهي و غير ذالک من الشرايع و العبادات، فلم تزل الملوک تعمل بمافي في هذا الکتاب الي عهد الاسکندر و ماکان من قتله لدارا ابن دارا، فاحرق الاسکندر بعض هذا کتاب ثم صار المک بعد الطوايف الي اردشير بن بابک فجمع الفرس علي قرأة سورة منه يقال لها (استاه)... ثم عمل زرادشت تفسيراً عند عجزهم عن فههٔ و سموالتفسير (زندا) ثم عمل اللتفسير تفسير أوسماه (بازند) ثم عمل علمأ هم بعد وقات زرادشت تفسير التفسير و شرحاً لساير ما ذکرناه و سموا هذا التفسير (باردم)...[2]

ترجمه: زرادشت و استيمان زوي د مجوسو بني دي، چه دوي ته ئې د ابستاکتاب راوړ، داکتاب عوام وګړي زمزمه بولي او ٦٠ حروفه لري چه په اکثرو نورور ژبوکي ډېر دغه حروف نسته زردشت دغه خپل کتاب په داسي ژبه راوړ چه بل چا هغسي نه سواي ليکلای او نه ئې څوک په مراد پوهيدل... داکتاب په دوولس زره ټوکه کي په زرو وليکل سو، وعد او وعيد، امرا ونهي او نور شرايع او عبادات پکښې وه، پاچهانو د اسکندر تر وخته پدې

لیکي "کتاب زند بر دو قسم است، یک قسم آن صریح و بي رمز که آنرا "مه زند" نیز می گفتند، و قسم دوم رمز و اشارات که آنرا "زند" هم مي خوانند...[۱]

د اوستا په خصوص کي د پنځمي مفکورې د خاوندانو لپاره دا تهول تاریخي دلایل موجود دي، او که موږ له دغه نقطهٔ نظر د اوستا کلمه تحلیل کړو، نو سمه راځي، په دې ډول دا نوم مرکب دي له دوو ټوټو څخه (اـ وستا) یعني مفتوح همزه په آریائي ژبو کي د نافیه (نا) په معنا راځي، په سنسکریت کي هم عام دي الف په (ی) هر وقت اوړي، نو (ا) ته (یه=یا) هم ویلاي سو، چه اوس د قندهار په پښتو کي کټ مټ د (نه، نا) په معنا د نفي لپاره دي. مثلاً احمد راغلي دي؟ یه ندي راغلي، د خلیل خان نیازی په دې رباعي کي (یه) د نفي په معنا ښه واضح شویدی.

خړي اوریځي ژاړي له پاسه　　　　کویله بړغ کا بیلتون له لا سه

یه، هغه لوني گوهر په خول ستا　　　　دا مرحبا کا ستا، بړموږ مواسه[۲]

دوهم جزو (وستا) له پښتو (ویستل) څخه جوړ شویدئ چه معنا ئې ده (استخراج، د باندي ویستل) د دې مصدر اسم مفعول (ویستلي او ویستئي) دي، او پخپله (ویستا) کلمه هم په زند ژبه کي اسم مفعول دي، نو اویستا داسي معنا لري: نا استخراج شوي، نامفهوم.[۳]

که په اوسنۍ محاوره دا کلمه ووایو (یه وستي) یعني (ناویستي) او نا مفهوم به وي، چه کټ مټ هغه "اوستا" هم دغسي ده.

د اوستا کتاب له بخدي او باختر څخه را وتلي دي، نو لکه پخپله د بخدي کلمه چه د پکهت او پښت او پښتون سره نښتې ده، د اوستا نوم هم دغسي له پښتو سره اړه لري، او د دې کتاب نا مفهوم توب د اسیري لاهیجي له هغه ذکر شوې پارسي بیته هم ښکاري، څکه چه دی وایي: له اوستا څخه معني نسي درک کولاي، بیهوده زیار مکاږه، د پنځمي مفکورې له رویه خو د اوستا کلمه په دې ډول تجزیه شوه (اـ ویستا) اما که د دریمي نظر ئې له

کي (او اسپ) یعني ښه آس (او اومرتیا) یعني ښه سړی راغلي دي[۱] او پخپله (هو) هم په پښتو کي د ایجاب کلمه ده، چه اوس هم ژوندۍ ده، او هغه د "ښه" معني لري.

دوهم جز چه (ستا) دي، ریښه ئې (س، ت) دي، چه له دې څخه د پښتو (ستایل، ستاینه، ستانه) د پاړسو (ستایش، ستودن) را وتلي دي. ستایوال هم په پښتو ستایش کننده ته وایي، امیر کروړ سوري چه د پښتو خورا پخواني ادیب او شاعر دي پخپله حماسه که وایي:

نړۍ زما ده نوم مي ستایي، پر دریځ ستایوال[۲]

په پهلوي کي هم د "ستا" ریښه وه، اسدي طوسي لیکي: چه "آفد ستا" مرکب دي له افد یعني شگفت او ستا یعني ستایش څخه لکه دقیقي چه وایي:

جز از ایزد تو ام خداوندي　　　　کنم از دل بتو بر آفد ستا[۳]

له دې څخه هم معلومیږي، چه له پخوا څخه دا ریښه په پښتو او نورو آریایي ژبو کي وه، نو له دغه جهته ویلاي سو چه د اوستا د کلمې دوهمه ټوټه (ستا) له دغه ستایلو څخه ده.

په دې ډول به (اوستا) پخپله د اوستا ژبي په اصطلاح (هوستا) او په پښتو به (اوستا) یعني (ښه ستاینه) او هغه "بهین ستایش او مهین نیایش" سي، چه دا لغوي تحلیل هم د اوستا د کلمې ریښې په پښتو کي څرگندوي.

### زراتشترا Zaratashtara

تر اوستا وروسته دوهم مهم نوم د دې کتاب د راوړونکي نوم زراتشترا یا زردشت دي، چه دا سړی د بخدي آرئیایانو یو نوموړي دیني مبلغ او موسس دي. د زردشت له نورو سوانحو او د ده له دین او کتابه سره دلته موږ نور کار نه لرو فقط د ده د نامه تحلیل د پښتو له پلوه کوو. د ده د ژوندانه د عصر په خصوص کي فقط دوني وایو، چه مورخین مختلف دي خو اکثر هسي وایي، چه زردشت د (٦٥٠ څخه تر ٥٥٠ ق،م) پوري یعني په دغه یوه قرن کي

لکه د دې نامه په ظاهري ډول او شکل کې چه اختلاف دی، په معنا کې هم دغسې مختلفې مفکورې موجودې دي، هر چا یوه توجیه کړېده، او مشهور اقوال ئې دغه دي:

۱- دینون Deinon یوناني مورخ وائي، چه زرتشتر یعني (د ستورو ستایونکي) دا مورخ چه تقریباً دوه زره کاله تر اوس دمخه ژوندي و هسې راې لري.[۱]

۲- نوی اروپائي محققین هم ډول ډول ترجمې ورته تراشي. مثلاً کاسل Cassel وایي، معنا ئې ( د ستوري زوي ده) ونیډشمن Windischman او میولر Muller دا عقیده لري، چه معنا ئې (د دلاور اوښ خاوند) ده، هارلز Horlez ئې په (لکه طلا داسې بریښېدونکي) سره ترجمه کوي، دارمستتر وایي چه معنا ئې (د ژیړ اوښ خاوند) ده بارتومه ئې (د زاړه اوښ خاوند) بولي، جاکسن انګلیس هم دغسې وایي، پروفیسور رات ئې د (زرګر) په معنا اخلي.[۲]

۳- شرقي پوهان د دې نامه معنا (آوردهٔ نخست یا آفریدهٔ اول) لیکي. او ځیني ئې په (فرستادهٔ یزدان یا نفس کل، نور مجرد، نفس ناطقه) سره ترجمه کوي.[۳]

٤- ځیني پوهان داسې وایي: چه دا کلمه له سامي ژبو څخه راغلې ده راولینسن انګلیسي لیکي چه لومړۍ جزو ئې (زرد) له (زیرد) څخه جوړ شوي دي چه معني ئې، زاده ده دوهم جزو ئې اشترا د زهري ستوري نوم دي، نو مرکباً ئې داسې معنا کیږي (زادهٔ ستارهٔ زهر) د کلدانیانو په عقایدو کې زهره د (ایستار) ظهر و، چه د عشق رب النوع او د جګړو ملکه وه.[٤]

٥- دا ټول نظریات چه ذکر شول د ځینو نورو پوهانو له خوا رد شوي دي ځکه چه هر چا یوه تقریبي او تخمیني مفهوم ورته ټاکلي دي، پورداؤد وائي:

ښائي چه یوه دغه نظریه سمه نه وي، ځکه که لومړي جزو (زر) وبولو، دا کلمه خو په اوستا کې زیریت Zairita وه، او زرنت د (زوړ او پیر) په معنا دي، مګر په ترکیب کې دا کلمات په څه ډول (زرت) شول؟[٥]

## د نامه تجزيه

په پښتوكي د زره تشتره نوم د هاګ د عقيدې پر اساس داسي تجزته كولاي سو چه لومړۍ جزو ئې يقيناً د اوستا زرته Zaretha او د پښتو زړه دي چه پارسي دل ته ئې په اوستا زرته وايه.[1] چه ورته ځير سو دكلمې استاسي عناصر (ز-ر) دي چه د اوستا (ر) د (ت) په ملګري يو راز آوازكاوه، چه د (ته=ذ) تر منځ ؤ، او دغه آواز د پښتو (ړ) اداكړى دي، نو اساساً ګويا دوهم اواز يو قسم درنه (ر) وه!

د زړه له مادې څخه ځني نور اسماء هم په اوستائي دوره كي سته، او موږ ته دا ثابتوي، چه د زردشت په عصر كي له دې مادې څخه ډير نومونه جوړ شويدي، مثلاً د بلخ په مشهورو تاريخي پهلوانانو كي يو (زرير) دي چه "ياتكار زيريران" كتاب د ده په نامه كښل شوي، او په پهلوي ژبه كي سته، زرير د ويشتاسپ ورور او اصلاً ئې نوم د مسته وست په قول "اسپه ياودا" و، او په اوستا كي ده ته (زري واري) لقب وركړ شوي دي[2] چه لومړي جزو ئې زري (زړه) او دوهم جزو ئې (وارى) د پښتو اوسني د فاعليت ادات (ور) دي، نو زري وارى (زړه ور) پښتو كلمه ده چه دغه زرى په زره تشتركي هم سته، زره، زري، زرته ټول دغه د پښتو (زړه) ته راځي.

اوس چه تاسي ته په اوستائي نوموكي د (زړه) دكلمې ريښې معلومې شوې، او دا مو ومنل چه د زراتشتر د نامه لومړۍ ټوټه هم دغه (زره=زړه) ده، نو به دوهمې ټوټې ته ولاړ سو، چه دغه څنګه ده؟

لكه چه تاسي وكتل: اكثرو خلقو دوهم جزو (اشترا) يعني اوښ بللي دي، په حقيقت كي د (ت،ش،ت،ر) اساسي حروف داكلمه تشكيلوي، چه (ش،ئې، ښ) او (ر، ئې، ن) هم ويل كيږي، نو تشتر د پښتو (تښتن) دي چه معنا ئې صاحب، خاوند، مالک ده، او داكلمه په پښتوكي د "څښتن" په شكل هم موجوده په ادب او محاوه كي عموماً ژوندۍ او مستعمله ده.

د (ش) او (ښ) ابدال عمومي دي، دا دواړه حروف له يوه مخرجه او يوه اصله دي د پارسي اكثر (ش) د پښتو په (ښ) بدليږي، اخرني حرف ئې (ر) ده، چه په پښتوكي په (ن) اوښتې ده دا ابدال هم روا دي، ځكه چه

لومړۍ برخه ئې سپیت (سپید) ده او د دې نامه معنا داسي کیږي "سپین نژاد" په ګاتها کي هم دا نوم ډیر ځله راوړي.[1]

سپین نژاد خو داسي مفهوم لري چه باید دي له سپینه پښته وي، او سپین پوستي وئ، مګر ښائي چه دا نوم معنوي جنبه هم ولري چه د ده اصل او خټه سپینه وه یعني له ښې او روحاني او شریفي کورني څخه و لکه چه ځینو خلقو دغه سپیتمان په (پاک روان) هم ترجمه کړي دي.[2]

په هر صورت دا فامیلي نوم د ترکیب او معنا له پلوه پښتو دي او د پښتو پر اساس ئې لومړی جزو (سپین) صفت دي. چه تر خپل موصوف دمخه راغلي دي دوهم جزو ئې (تمان) موصوف دی چه اوس د دې کلمې شکل په پښتو کي (تومنه) ده، یعني اصل او مایه. په قندهار کي دا کلمه اوس هم په دغو معناو سته مثلا د مستو تومنه هغه مستې بولي، چه د مایئې په ډول ئې تودو شدو ته اچوي چه مستې سي.

د بد خلق سړی په خصوص که وایی "تومنه ئې خرابه ده" یعني اصل او نژاد او مایه ئې ورانه ده[3] نو په پښتو کي به هغه تاریخي سپیتمان (سپین تومني) یعني (سفید نژاد) سي، چه فقط یو د سپین آخرني (نون) د تخفیف له پلوه حذف شویدي، او د تومنی (واو) هم ځکه چه حرف علت دي، په الف اوښتي، او له خپله ځایه ښوریدلي پسله (م) راغلي دي. او داسي تغیرات چه په ځو زره کاله کي دې کلمې ته ور پیښ شوي دي، د ژبو په تحول کي عمومي دي.

د سپیتمان لومړي جزو چه (سپین) دی، په اکثرو آریائي نومو کي ریښه لري، یعني د باختر آریائیانو د اکثړو نومو په سر کي سپین کلمه راځي، مثلاً سپین دات Spendat سپین تا Spenta سپینتو داتا Spentodata او نور چه د اوستا په وندیداد کي داسي نومونه ډیر دي او د لومړی جزو معنا ئې هم دغه سفید دي، چه د پښتو "سپین" کټ مټ پکښې معلومیږی.

نو په دغه تاریخي استناد په ټینګه ویلاي شو، چه د (سپیتمان) لمړی جزو هم دغه (سپین) دي چه د هغه عصر

ګایګر الماني وايي: چه اهوره مزده د عالم پاچا او د غیب او شهود مالک و. هر ځاي د خالق تعالی نوم داسي په اوستا کي ذکر شوی دي[1] په هر صورت خو دا نوم د اوستائي ژبي یو مهم اسم دي او تر اوسه هم په پاړسو ژبه کي د (اور مزد) په ډول موجود دي، که موږ دا نوم تحلیل او تجزیه کړو دري ټوټې دي (اهور=اور) دوهم (مزدا) او په دې ډول دا دواړی ټوټې په پښتو کي ریښه لري.

تاسي دمخه د سنسکریت په څیړنه کي د (مزدا) دکلمې نظایر او امثال او ریښې په پښتوکي ولیدې، نو ئې دلته تکرار ښه ندي، فقط د لومړۍ ټوټې تحلیل دلته ولولئ: اوستائي (اهور) د (هور) په شکل اوس په پاړسي ادب کي موجود دي چه معنا ئې نور، لمر ده، ځکه چه هر وخت د اوستا (هـ) په سنسکریت کي په (س) اوړي، نو دا کلمه په سنسکریت کي سور او سوریا شوې ده چه لمر ته ویل کیږي.[2] فردوسي وائي:

از ویست شادي و زویست زور خداوندکیوان و ناهید و هور

ځکه چه له هور څخه مقصد رڼا او بیا لمر ؤ، نو له دې جهته کله ستوري او طالع ته هم مناسبتاً (هور) ویل شویدي، فردوسي وائي:

به یکبارګي تیره شد هور تو کجا شد چنان مردي و زور تو؟

په پاړسوکي د اوستا (هـ) په (خ) هم بدلیږي لکه چه دمخه هم ویل شوي دي نو دغه کلمه (خور) هم شوه، چه لمر ته وائي، دکتور ګایګر هسي شرح ورکوي چه هور یعني لمر او نور چه د اهورا مزدا مخلوق دي، د نورالانوار او ضیاي مطلق په مفهوم هم و.[3] پخوانو انسانانو رڼا او نور مقدس ګڼل، او احترام ئې کاوه، ځکه نو دوي لمر په اسمان کي مقدس ګاڼه چه د نور منبع دي، او په مځکه کي بیا د نور منبع (اور) باله او مقدس ئې ګاڼه، لکه چه په ویدا او اوستا دواړوکي د اور په نمایندګي ارباب انواع سته مثلاً د ویدا یو مشهور رب النوع (اګني) یعني (اور) دي، چه د دوي په عقیده ئې لمر، بریښنا، او اور دري بدنونه دي، او د رڼا او اور د تقدیس عقیده په اوستائي آریائیانوکي هم وه[4] ګایګر وائي: چه په مځکه کي د ټولو رڼاؤ مرکز (اور) دي، او بیله اسماني

هوربذ د زردشت لقب دي، او معنا ئې ده (د اور خدمتګار) یا (اور مشر)، عربو دا کلمه هربذ کړه چه جمع ئي هرابذه ده، علامه خوارزمي وایی: چه دا د فرس پهلوي لغت دي، او معنا ئې خادم النار او عبدالنار ده.[1]

په پاړسو ادب کي هم هیربد د زردشت د لقب په ډول استعمال شوی دي "ندانم که آن هیربد را که کشت؟"

له دغو ټولو تاریخي او لغوي څیړونو څخه تاسي ته ښکاري چه په مځکه کي (اور) د آسماني (اهورا=هور=اور) نمایند ؤ، او دا پښتو کلمه په اوستا کي په لوړو صورتو موجوده وه، کله ئې معنا رڼا، کله لمر، کله اور وه.

پوهان وایي: چه په ویدا کي (ورن) یو رب النوع دي، چه دغه کټ مټ د یونانیانو (اوري ناس) او د اوستا (اور مزد) دي، او د دې نومو ماده او عنصر هم (ور) ده.[2] نو که دې کلمو ته سړي ځیر سي، لومړي جزو ئې دغه پښتو (اور) دي (ور=اوری=اور) چه د ایران د مخامنشي دورې د زړې پارسي په کتیبو کي هم (اورمزد) راغلي دي.[3]

نو که د دغه لغوي تحلیل له رویه، تاریخي مواد هم په نظر کي ونیسو، او د اوستا، د (اهوره مزده) معنا وکړو باید داسي ووایو (نمنځلي اور) یا (مجلله رڼا) یا (د عبادت وړ رڼا) چه ذات واحدلا شریک دي.

د دې کلمې اوستائي ترکیب هم د پښتو سره سم دي، ځکه (مزدا) چه صفت دي تر اهورا موصوف دمخه دي په دې ډول (مزدا اهورا)[4] چه له دغه څخه ئې هم پښتو ته نردیوالي ښه ښکاري.

### واره Vara

دا کلمه هم ډېره تاریخي او مهمه ده، اوستا په وندیداد کي دا نوم راوړي، او داسي ښکاري چه په بخدي کي دا لومړۍ وداني ده، چه یما Yama د اهورا مزده په امر جوړه کړه. پخپله اوستا د دې وداني په خصوص هسي وایي: "تر ژمي دمخه په هیواد کي ډېر واښه د ژویو لپاره را شنه شول او اوبو ښه خړوب کړل، نو اوس به تر واوري

یوه واله کي چه هیوه هاتره[1] اوړده وي، هلته ښائي چه ته یو ټاټوبي ودان کړې، چه یو کور وي د لوړي خوني او غولي او دالانه سره!

هلته ښائي چه ته د سړیو او ښځو تخمونه یوسې کوم چه ډیر لوي او خورا ښه او غوره وي پر مځکه، هلته ښائي چه ته د هر راز ژویو تخمونه یو سې، کوم چه ډیر لوي او خورا ښه او غوره وي پر مځکه؛

هلته ښائي چه ته د هر راز ونوو تخمونه یو سې، کومي چه ډیري جگّي دي، او خورا ښه بوي ئې ځي، پر دې مځکه هلته ښائي چه د هر راز میوو تخمونه یو سې کومي چه خورا ښه خوند او ښه بوي لري.

له دغو ټولو تخمو ځخه ښائي چه ته دوه دوه له هره ډوله ځخه یو سې، او په ډیر زیار ئې خوندي کړې، تر څو چه هغه سړي ټول په (واره) کي هستوگن سي.

هلته ښائي، چه ټیټي یا خیټو، یا لیني یا لپوني، یا بد خواه، یا درواغجن، یا کین کښ، یارخن (حاسد) یا وران غاښي، یا پیس استوگه وکړي... د دې ځاي په لویه برخه کي ښائي چه ته نه واټونه جوړ کړې، شپږ په منځ کي او دري نور په هغه کوچنی برخه کي، د لویئ برخي په واټو کي ښایي چه ته زر سړي او ښځي واچوې په منځني برخه کي ښائي چه شپږ سوه وي، او په کوچنۍ برخه کي درې سوه، ښائي چه دغه واره په خپل طلائي مهر ټاپه کړي، او یو ور او کړکۍ ورته جوړه کړي، چه پخپله یو له بله سره ورځي.

دلته نو یما له ځانه سره وویل دغه وراه چه ما ته ئې اهوره مزدا د جوړولو امر وکړ زه په چا جوړه کړم؟ اهوره مزدا ورته وویل: اي ښکلي یما، د ویوانگهت زوا! مځکه د خپلي پښې په پونده وخره او بیا ئې په خپلو لاسو ختټه جوړه کړه لکه کلالان چه د خپلو لوښو لپاره ختې جوړوي!

بیا نو یما دغسي وکړه، لکه اهوره مزدا چه ویلي وه، مځکه ئې په پښو وخرله او پخپلو لاسو ئې ختټه جوړه کړه لکه د لوښو ختټه. نو یما یوه واره ودانه کړه، چه د آس د سپرلو د ډگر غوندي ئې هر اړخ ؤ او ده هلته د پسو او غویو او سړیو او سپیو او مرغانو تخمونه، او ځلاند سور اور یووړ، ده جوړه کړه یوه واره، د سپرلو ډگر په شان، د

ښه بوي لرونکي وې تخمونه یووړل. له دغو ټولو تخمو څخه ده دوه دوه یووړل، او په زیار ئې هلته وساتل تر څو چه دغه واره په سړیو ودانه سوه.[۱]

په ورستنیو فقرو کې کټ مټ هغه د مخني د واره ودانولو اصول بیرته راغلي دي، چه دمخه ذکر شول، او وایي چه یما دغسي وکړه، لکه چه امر ورته شوي و، څو چه واره ودانه شوه.

پدې ډول اوستا د واره ودانولو نقشه مفصله کاږي او لدې څخه هسي ښکاري چه یما د اهوره مزدا په ښوونه واره جوړه کړې او څه هغه کي د مدنیت لومړی اساس ایښې و.

واره په بخدي کي وه او تر اوسه ئې هم آثار د نو بهار په نامه سته هغه وخت چه د یما په دغه تاریخي ټاټوبي کي زردشت را وپاڅیدي نو ده ده له درو زامنو څخه یو چه یوروتاد نره Urvatad-nara نومیدي واره مشر ټاکلي شوي و یعني Temporal lord of the Vara.[۲]

د اوستا دا (واره) وروسته عجیب تاریخ لري او هم دا کلمه د زمانو د تیریدلو سره هسي رنګونه مومي، چه کورټ نه پیژندله کیږي، ځکه چه په پښتو کي ریښه سته، نو دلته څه نه څه د دې لغت تاریخي او ادبي تحولات بیانوم.

په سنسکریت کي له دغي ریښې څخه ډیر کلمات جوړ شوي دي، مثلاً واړ var یعني محوطه، ځاي، د هندوانو دستیٍ کولو ځاي. واړا vara د یو ښار څلورمه برخه، یو ځاي چه د هري طبقې خلق پکښي اوسیٴ، واړی Vari یوه محوطه، غولي، دربار، باغ.[۳]

د سنسکریت (واړه) د اوستا له (واره) سره هم په تلفظ هم په معنا کي یوه ده، او دا یوه آریائي پخواني کلمه ده، چه وروسته په بودائي دوره کي (وهار) شوه، ځکه چه دغه د بخدي (واره) هم وروسته د یوه معبد په ډول د زرتشتي دین کانون او مرکز وه، نو هغه وخت چه د زردشت اتباع ورک شول او د ده دین له منځه ولاړ، نو پر پښتونخوا او باختر د بودائي مذهب خپې راغلې، او افغانستان د دغه مذهب مرکز سو، بامیان ئې د بتخانو او

که څه هم ځني لیکوال لکه د هند مولانا سید سلیمان ندوي په تعلقات هندو عرب کي دغه معبد کورټ یو بودائي بودتون ګڼي او وائي چه بلاذري مورخ په ۲۴۷هـ کي د عربو د بریو پر وخت ډیر داسي وهارونه په سیند کي ښوولي دي چه سرې جنډې به ئې در لودې[١] مګر لکه محققین چه وائي لومړي دا د بلخ (وهار) یوه زرتشتي آتشکده وه[٢] وروسته چه بودایي مذهب راغي نو دا ځاي یو بودائي بودتون (بتخانه) سوه، مشهور مستشرق زخاؤ هسي وایي: چه د نوبهار کلمه اصلاً نووهار او بودایي خانقاه وه.[٣]

برتهالډ W. Barthald نومي مستشرق همداسي وایي چه د یوه چیني سیاح او ابن فقیه له بیانه هسي ښکاري چه دغه نوبهار د بودائیانو (نو وهار) و.[٤] پدې کي شک نسته چه د بلخ واره چه په اوستا کي ذکر شوې ده د زرتشتیانو مرکزي معبد ؤ مګر د اسلام د راتګ پر وخت یعني په شپږمه عیسوي پیړۍ کي ټول تاریخي روایات دا ښکاره کوي چي دا ځاي بودائي بودتون ؤ مثلاً هیوان تسنګ چیني سیاح چه په شپږمه عیسوي پیړۍ کي بلخ ته راغلي ؤ دغه معبد یو بودائي بودتون ښکاره کوي.[٥]

او دا هغه وخت دي چه تر ده وروسته نو اسلامي فاتحین دلته را رسیدلي دي او پدغه وخت په سنده کي هم د نو بهار په نامه بودائي بتخانې موجودي وې.[٦] چیني زایر هیوان تسنګ چه دمخه ئې ذکر وشو د بلخ دغه معبد ویهارا بوللي دي وایي چه دلته دوه بودتونونه موجود وه چه یو ویهارا بلل کیده بل ناو او یهارا یعني نوبهار چه اسلامي مورخین هم د نو بهار ذکر کوي. مسعودي وایي: د نو بهار عمارت ډیر پوخ او جګ و، زرغونې جنډۍ په نیزو وپیيلې لوړي پر رپیدې څلورو خواو ته ئې دیوالونه وه او دا جنډۍ دوني لویي وې چه له لیري ښکاریدې.[٧]

ابن الفقیه همداني وائي: نو بهار برمکیانو جوړ کړي و، دوي د بتانو پرستش کاوه، دوي چه د قریشو د مکې حال وارویدي، نو ئې دا معبد جوړ کړ، چه نوم ئې نوبهار و یعني نوی د دې ځاي یوه ګنبده (اشبت) سل ګزه لوړه او سل ګزه ارته وه، شا و خوا ئې د متولیانو ۳٦۰ کوټې وې مشر متولي ئې برمکا نومیدي، د چین او کابل پاچهان د

هر کال په پسرلي خلقو گلونه اچول، نو په نوبهار مشهوره شوې وه. د دې ځاي لوړه جنډۍ له بلخه په ترمذ کي ښکاره کیده، د هندوسستان او چین او کابل پاچهان د دوي په مذهب او بت پرست وه.[1]

علامه قزویني داسي وايي: په بلخ کي د نو بهار وداني او تر ټولو لویه بتخانه وه، چه په وریښمو او جواهر سنبال شوې وه، سل گزه لوړه او سل گزه ارته وه. برامکه د دې ځاي اصلي متولیان وه.[2]

د اسلامي مؤرخینو له دغو روایاتو ځخه هم د بلخ د نوبهار د ودانۍ شهرت معلومیږي او ښایې چه هغه قدیمه واره ورانه شوې وي، او لکه یاقوت چه وايي بیرته د برمک له خوا ودانه شوی او "نو بهار" بللې شوې وي.[3]

په هر صورت دلته زموږ مقصد دا ندي چه د نو بهار تاریخ ولیکو فقط د دغو تاریخي روایاتو په سیوري کي غواړو چه د دغه نامه لغوي تحلیل وکړو، او په پښتو کي هم ریښه ومومو.

تاسي ولیدل چه اصله اوستائي کلمه واره وه په سنسکریت کي په لږ تغیر واړه شوه چه معنا ئې ښار او محوطه او کلا غوندي وه ځکه چه د بخدي واره د زرتشتي مذهب مرکز و او بیا نو د بودائیانو بوتون ځني جوړ شوي و په دې لحاظ په اسلامي دوره کي هغه بودائي وهاره هم لفظاً هم معناً لږ څه واوښته او لکه دمخه چه تاسي ډیر نور مثالونه ولیدل (و) پخپله هم مخرجه حرف (ب) بدل شو (بهار) وگرزیدي او بیا (نو) یعني نوي هم ورسره زیات شو (نوبهار) او تر اسلامي دریمی پیړۍ پوري دغه بودتون موجود و او لکه چه لوړ مو ولوستل د عربو مشهور مؤرخینو ئې ذکر راوړي دي.

د بهار کلمه په پاړسو کي ډیري معناوي لري چه یوه مشهوره معنا ئې بتکده هم ده شمس فخري وايي:

رسید موسم نوروز کز نسیم بهار          شود بساتین آراسته بسان بهار

فرالاوي وایی:

نه همچون رخ خوبت گل بهار          نه چون تو به، نیکوئي بت بهار

نظامي وایي:

چه شهر شهر و بدو اندرون سراي سراي     چه کاخ کاخ و بدو اندرون بهار بهار[1]

په حقیقت کي دغه د بتکدې معنا بهار ته مجازي ده اصلاً خو وداني اوکلا غوندي یو شی و او دغه حقیقي معاني ئې اوس په پښتو او پاړسو دواړوکي پاته دي په پاړسوکي باره او بارو د هار اوکلا په معناو سته لکه چه قاآني ویلی دي:

صد باره براوردند بهتر     صد باره ز بارهٔ سکندر[2]

د پاړسو د یوار په کلمه کي هم وار په خپل اوستائي شکل موجود دي چه په پښتوکي (ر) په هم مخرج حرف (ل) اوښتې ده او (ویوال) وایو اما پخپله هغه پخواني کلمه (واره) هم په پښتوکي په هغه زاړه مفهوم سته فقط (و) په (ب) اوښتي او (باره) شوې ده چه (باړه) هم تلفظ کیږي.

باره په اوسني پښتوکي د اوبو بند او ډبرین دیوال په معنا ده چه کلا او حصار ته ورته وي او پر کښت او غوجل ئې راګرزوي په اوستاکي چه کومه واره د غوجل لپاره یما جوړه کړې وه شکل او لغت ئې تر اوسه په پښتو کي موجود دي داکلمه په پښتو ادب کي هم وه لکه چه خوشحال خان وایې:

خوشحاله چا ته وایې پندونه     خلق خوشحال دي په خپل سندونه

که زړه دي وارکا ژبه قراره کړه     مات دي د پند د باړي بندونه

یعني د پند د دیوال او حصار بندونه مات دي او اثر نلري.

رحمان بابا وایې:

باړه وتړه نور هله زراعت کړه     تقوا دار شه هله تمه د جنت کړه

باره یا باړه د محوطې او داسي ځاي په معنا هم راځي چه ترکلي دباندي د بازیو لپاره جوړوي او شاو خوا یو لنډ دیوال پر راګرزوي لکه پدې لنډۍ کي:

دا اوسني داسي زلمی دي     په ساګو ډک شی په تیندک باړو له ځینه

پاړسي: باره barah بارو baru حصار، کلا

پاړسي: د (دیوار) آخرني جزو (وار) var

انګلیسي: وال wall د دیوار په معنا

پښتو: باره barah یا باړه barah بند دیوال، حصار، کلا

پښتو: د دیوال آخرني جزو وال wall

پدې ډول نو د اوستا د تاریخي نوم (واره) ریښې په ټولو آریائي ژبو مخصوصاً په پښتو کې کټ مټ سته او له دغه څخه هم د پښتو تاریخي رابطه له اوستا او بخدي سره ښه ښکاري.

د تلفظ او معنا لږ څه تحول او تغیر هم د ډیرو پیړیو تیریدلو اثر دی او په پښتو کي چه کوم مفاهیم باره لري هغه اصلي تاریخي مفهوم ته ډیر نژدې دي، دا هم باید دلته هیر نکړو چه لدغي ریښې څخه (هار) تر اوسه هم د ډیرو ځایو په نومو کي سته او په ښکاره د حصار او ښار معنا لري، مثلاً کندهار، ننګرهار، چپرهار، نندهار، وهار چه دا ټول د ځایو او ښارو نومونه دي، او موږ ته ښکاره کوي چه دغه ریښه د ودانۍ، ښار، حصار په مفهوم له قدیمه موجوده وه او اوس هم سته!

دلته دا خبره هم د ویلو وړ ده چه د نوبهار نوم تر اوسه هم په بلخ کي موجود دي. د بلخ وران ښار جنوبي دروازه ترا اوسه هم "دروازهٔ نوبهار" بولي او لکه محمد صالح ورسجي چه د ۱۰۰٦هـ په حودود کي لیکي: په دغه وخت کي چه لا د بلخ ښار ودان ؤ، او شپږ دروازې ئې درلودې. یو ور ئې نو بهار نومیدي چه بعضو خلقو دروازهٔ سلطان احمد یا دروازهٔ بابه قو هم باله.[1]

### بامي Bami

دمخه تاسي د (پکهت=پښت=پښتون) او (بخد=بخدي=بلهیکا) د کلمو په تطبیق او نژدې والي کي د بلخ او

ښار جوړ کړ.[١] دارمستتړ وايي: چه باميک درخشان معنا لري، او په اوستائي ژبه او زندکي ريښه باميه Bamya ده چه ځلاند ته وايي.[٢]

له دغي تاريخي پلټني څخه ښکاري چه باميک زړه اوستائي کلمه ده چه په پهلوي ژبه کي هم پاته وه، او وروسته په پاړسو ادب کي بامي شوه، د پاړسو ادب په لومړيو آثاروکي دا کلمه وينو، مثلاً فرخي سيستاني چه د ٤٢٩هـ په حدودوکي مړ دي وائي:

مرحبا اي بلخ بامي همرهٔ باد بهار      از در نوشاد، رفتي يا ز باغ نو بهار

حکيم اسدي طوسي په ٤٥٨هـ هسي وايي:

بفروختن اين حال گيتي فروز      سپه راند از امل شه نيمروز

سوی شير خانه بشادي وکام[٣]      که خواني ورا بلخ بامي بنام

فردوسي طوسي د ٤٠٠هـ په شا و خواکه وائي:

سوي بلخ بامي فرستاده شان      بسي پند و اندر زها داد شان

يا دا:

درم بستد از بلخ بامي برنج[٤]      سپر دو نهاديم يکسر بگنج

علامه البيرني د ٤١٠هـ په حدودوکي د بلخ ذکر کوي او وائي: بلخ واسمه في القديم بامي[٥] لکه لوړ چه مختصراً در ښکاره شوه، بامي تل د بلخ سره يو ځاي راغلي دي، او د استعمال له ډول او مورد څخه هم دا څرگنديږي، چه بامي د دې ښار لقب ؤ او يا د دې ښار په صفاتو او جغرافيوي اوضاعو اړه لري، چه قدماو بامي بللي دئ.

د پاړسو ژبي د لغاتو پلټونکو او فرهنگ ليکونکو هم د دغي کلمې معنا لکه د استعمال له مورده چه ښکاره کېږي، ضبط کړي وه، يو فرهنگ ليکونکي داسې وائي "بامي د بلخ لقب او تلفظ ئې د راضي پر وزن کېږي."[٦]

بعضي مورخین داسي هم لیکي: چه بلخ بامي د بلخ بامیان په نامه هم ذکر شوي دي، بامي او بامیان دواړه مشهور دي.[۱] ذکي ولیدي توغان چه د اسلامي آثارو او زړو کتابو پیژندوني، او د استانبول د پوهنتون د تاریخ استاد او پوهنوال دي هم وایي چه ښایي د بامیان نوم له بامي څخه اخیست سوي وي، نو بامیان باید بلخیون یعني د بلخیانو په معنا وي، او ښایي چه د بامیان ښار د بلخ خلقو ودان کړي ځاي وي.[۲]

لکه چه د دغو محققو تاریخ پوهانو راي ده، باید هم ضرور د بامیان نوم له بامي سره اړه ولري، ځکه چه دا دوه معروف او مشهور ښارونه هر وخت تر یوه اداره لاندي وه، یو ثقافت ئې درلود، د یوه مدنیت مراکز وه نو لیري نده چه موږ د علامه زکي ولیدي خبره ومنو او دگنج دانش په روایت ویسا وکړو.

اوس چه تاسي ته تر یوې اندازې د بلخ بامي د نامه تاریخي او ادبي شهرت ښکاره سو نو به د بامي د کلمې شرح د پښتو ژبي له خوا هم لاندي ولیکم چه دغه کلمه اصلاً پښتو ده او دا نوم هم پښتو دي. د پښتو په اسماء الرجال کي موږ د بامي نوم اوس د یوه قوم پهٔول وینو، بامیزي د ابدالیو له ځیرک څخه د پوپلزو په ښاخ کي یوه پښه ده[۳] او د دې قبیلې افراد تر اوسه هم په قندهار کي سته د قندهار په اوسنی ښار کي یوه مخصوصه محله د بامیزو کوڅه بلله کیږي. د دې قوم په نامه، پدې ډول خو بامي یو علم یعني د سړی نوم دي او موږ ته دا ښکاره کوي چه دا کلمه د نامه (اسم) په ډول زموږ په اسلافو او پخوانو کي مستعمله وه او دوی بامي پر سړو نوم ایښو.

که څه هم د علمي قانون له رویه اسما او اعلام معلول په علت ندي مگر بیا هم د یوه علم اطلاق پر سړیو باندي بیله کومي نژدې یا لیري وجه تسمیي نوی او کومه رابطه د اسم او مسمي تر منځ هم کله کله موجودیږي که موږ د پښتنو اسماء الرجال او اعلامو ته ځیر سو دا به را ښکاره سي چه د دوي په پخواني ژوندانه کي د قدرت او د طبیعت له مظاهرو سره رابطه ټینگه وه یعني دوي د یوه نوم د ایښوولو پر وخت د هغو شیانو نومونه اخیسته چه هغه شیان د دوي په حیات کي داخل وه او دا هم هغه د طبیعي محیط یوه غیر شعوري اغیزه ده چه پر ټولو مخلوقاتو باندي جاري ده او په پاي کي د اجتماعي پوهانو له خوا دغه د "قانون تطابق محیط" په نامه یادیږي، ښه

غټول یا غاټوي یا ختټول خو موږ پیژنو چه لاله دي مګر بامي زه تر اوسه نه پیژنم چه د کوم ګل نوم دي؟ ښائي چه غټول د لاله عمومي نوم و او بامي ئې بیا مخصوص خاندان او فرعي قسم وي!

موږ ته دا هم ښکاره ده چه په بلخ کي تر اسلام دمخه یو معبد و چه نووهار ئې باله او شرح یې دمخه راغله. دي بودتون لوي لوي عمارتونه او جګي جندۍ درلودې چه له لیرو ځایو څخه ئې خلق لیدلو ته ورتله د مورخینو په قول ئې بیرغونه په ترمذ کي دوولس فرسخه لیري لیدل کیده[1] که موږ په تاریخي سترګو وګورو د دې بیرغو آثار په خورا پخوانۍ زمانه کي هم وینو ځکه چه په اوستا کي هم بخدي د جګو او لوړو بیرغو هیواد بلل شوي دي.

د ګلانو استعمال او وجود د بلخ په نوبهار کي هم له قدیمه څخه و ځکه چه هغه معبد به هر کله په ګلو ښکلي و حتي دا رسم اسلامي مورخینو هم لیدلي و یاقوت حموي خپل کتاب ئې تر ٦٠٠هـ وروسته کښلي دي د عمر بن الازرق الکرماني په روایت لیکي چه نوبهار په بلخ کي یو مشهور او لوي معبد و چه هر کله به په حریرو او نورو ښکلیو او قیمتي ټکرانو پوښلي و او د هغه ځاي د خلقو دا دود و چه یوه نوی او ښه بنا به ئې جوړه کړه نو په ګلانو به ئې پوښله او د پسرلي په وخت به ئې لمړني ګلان هم پر دې نو بهار اچول، او د نو بهار پر شا و خوا لکه ښار ډیري ودانۍ وې، چه زایرین به هلته اوسیدل.[2]

د یاقوت له دې روایته ښه څرګندیږي، چه په پخواني بلخ کي نو بهار و او په نو بهاروکي د خلقو دا دود و چه په پسرلي به ئې دا خونه په ګلانو پوښله ځکه چه بامي په پښتو د ګل نوم دي، او بلخ هم بلخ بامیان یا بلخ بامي بلل کیدي، او د دغو ګلانو استعمال د بلخ د خلقو مذهبي دود او رسم و، نو هیڅ لیري نده چه بلخ په همدې سبب بلخ بامي نومیدي، او تر اوسه هم د ګل سرخ د پسرلي میله په مزار شریف کي جاري ده، چه د سخي په مزار کي کیږي.

د ادب او بلاغت په علومو کي دا خبره هم زباده شوې ده، چه یو لغت د زمانې د تیریدلو او د محیط له ګرزیدلو سره سم د معنا او استعمال له پلوه تطور مومي، لکه چه تاسي په دې کتاب کي ډیر ولیدل له حقیقته مجاز

په دواړو صورتو د بامي کلمې اصل او ريښه په پښتو کي سته، او لکه لوړ چه ذکر سوه د پښتو بامي او د بلخ بامي او باميان تر منځ يوه ټينګه علاقه سته، چه دلته د تاريخي او لغوي اسنادو په ويسا په لنډ ډول ښکاره کړه سوه.[1]

**اسپه Aspa**

د باختر په تاريخ کي داکورنۍ ډير شهرت لري او په اوستائي نوموکي د آس په نامه تسميه خورا ډيره ده د هغه وخت خلقو ځانونه د حيواناتو مخصوصاً د آس په نامه يادول او تر اوسه هم دغه آريائي رسم په پښتو کي سته مثلاً ډير خلق خپل نومونه سکانړ، کورنګ، او مشکي، بورخان ېردي، چه د آسانو اقسام دي.

ځکه چه په باختر کي تر اوسه هم ښه اسان پيدا کيږي، نو له قديمه دا رسم عام دي او د بلخ پاچهانو يوه مشهوره کورنۍ داسي ده، چه د اکثرو پاچاهانو د نومو په پاي کي اسپه کلمه راځي[2] او دا نومونه اکثر هم پښتو دي.

پخپله اسپه د آس مونثه کلمه ده، او تر اوسه هم په پښتو کي دا عام رواج دي، چه د مالدارۍ حساب په مؤنث جنس کوي مثلاً داسي وايي، فلاني زر اوښي لري يا زر ميږي لري، نو ځکه په قديمه زمانه کي هم د آس پر هر ځاي اسپه مستعمله شوې ده. له دغو پاچهانو څخه دغه نومونه چه ټول اوستائي دي کټ مټ پښتو دي:

مثلا خواسپه يعني ښه اسپه چه لومړۍ کلمه ئې هغه (خو=هو=ho) ده چه د پښتو ښه او خه تر اوسه په هغه معنا سته. يا لهر اسپه چه لومړی جزو ئې لهر دي، دا کلمه په پښتو کي د موج او تند او چابک معنا لري، چه کټ مټ ئې دغه معنا په اوستا کي هم درلوده ځکه چه دا نوم په اوستا کي په قديم ډول اورت اسپه Aurat Aspa هم راغلی چه معنا ئې چابک آس دي.[3] اما لهر په پښتو کي په لوړه معنا داسي مستعمل دي لکه خوشحال خان چه وايي:

خوار خوشحال ئې لکه خس هسي لاهو کړ    چه د عشق سيلاب را وخوت لهر لهر

مناسبت مشکل دي[1] مګر که موږ وګورو دغه لومړي جزو ښکاره ښښتو (وچت) دي چه اوس ئې (هـ) په (و) یا (او) بدلوو، او اوچت هم وایو، نو اوچته اسپه یعني جګه او قوي او مشهوره اسپه.

## کاوه Kava

کاوه، کاوي، کوي، کاویا، کي په اوستائي دوره کي ډېره مشهوره کلمه ده او دا یو مجلل عنوان و چه د قدیم مشرانو ته ورکول کیدي، مثلاً کاوي یا کواني یا کیاني د بلخ د مشهورو پاچهانو د کورنۍ نوم دي او په اوستا کي دا عنوان د ویشتاسپ سره ذکر کیږي، چه د زرتشت حامي پاچا و.[2] دغسي دا لقب د ډېرو اوستائي نومو سره راځي لکه کي خسرو، کیقباد او نور.

کوي، کاوي، په ویدا کي هم راځي، او هلته د دانا معنا لري[3] او ځئي ئې د پیشوا او پیغمبر په معناو اخلي، او ارباب انواعو ته هم دا عنموان استعمال شوی دي.[4] په سنسکریت کي کاویه شاعر او سرود ویونکي ته وایي.[5]

په دي ډول تاسي ته ښکاری چه د کاوه کلمه له ویدا او اوستا څخه ژوندۍ وه او د دانا او سردار او روحاني مشر په معناو راتله، د پښتو په پخواني ادب کي هم دغه کلمه مستعمله وه او ظاهراً داسي ښکاري چه د نجات او هوښیارۍ مفهوم ئې درلود مثلاً شیخ رضي لودي د شیخ حمید لودي ورور تر ۴۰۰هـ دمخه له ملتانه د سلیمان غرو ته د اسلام د تبلیغ لپاره راغلي و، دلته ئې وارویده چه د ده وراره نضر ملحد شوي دي، نو ئې یو شعر ورولیږي چه یو بیت ئې دا دي:

نصره! نه مو یې له کهاله      لودي نه یې په کاوه[6]

دلته ښایي چه کاوه دا معنا ولري، چه په دانائي او پوهي او نجابت او سرداري کي داسي نه یې لکه لودي، چه په دغه کلمه کي کټ مټ هغه ویدي او اوستائي زوړ رنګ سته او دا ښکاره کوي چه دغه ریښه پخوا هم په دغه لست کي وه.

نومونه پښتو وه. په دې کتاب کي د اوستا جغرافيائي معلومات زموږ مقصد ندي فقط د هغو ځايو نومونه تحليل کوو چه د پښتو لغاتو څرک پکښي معلوميږي.

**مانده Mandeh**

دا کلمه په پښتو کي اوس عامه ده، مانده لوئې شيلې ته وايي چه د سيل اوبه پکښي بهيږي. په قندهار کي ډير ځايونه په دې نامه اوس هم سته لکه ميل مانده، مړوندئ مانده، شاشک مانده او نور.

دا نوم له پخوانو زمانو څخه د هيواد د رودو او غرو په نومو کي داخل دي په اوستا کي ډير داسي نومونه سته چه آخره کلمه ئې مانده وي.

لومړي پلا موږ د اوستا د شپاړسو آريائي هيوادو په بيان کي يوولسم هيواد هيتومنت وينو په دې ډول: :له هغو ښو مځکو څخه چه اهوره مزدا پيدا کړي يوولسمه رڼه او مشرفه مځکه هيتومنت Haetument ده.[۱]

دا نوم لکه ډارمستتر چه ليکي په يوناني کي اری منتس Erymanthus او اوس هيرمند او هلمند بلل کيږي.[۲]

لکه چه ښکاره ده، د دې نامه اخر جزو منت دي، چه وروسته دا کلمه مند هم ضبط شوې ده، او هتومند Hetumand شوې ده.[۳] په وندیداد کي دوه غرونه چه سيامکه او فراييو دي هم ذکر شويدي[٤] د ډارمستتر په قول دغه غرونه په بندهيش کي د سياک اومند Siyak-omond(تور غر) او وفار اومند Vafar-omand يعني اورين غره په نومو راغلي دي[٥] د دغو غرو په نومو کي اورمند هم دغه مانده دي چه له هغه اوستائي منته سره نژديوالي لري، ځکه چه غر او مانده سره لازم او ملزوم دي، نو کله پر مانده هم د غره اطلاق شويدي. علاوه پر دغه په دوهم نوم کي وفار په ښکاره دغه پښتو واوره ده، چه يو (و) په خپل هم مخرجه حرف (ف) اوښتي دي، او ډارمستتر ئې هم معنا واوره، برف بولي.

نو له دغو تاريخي خيړنو څخه داسي نتيجه اخستلاي شو، چه د اوستا منت mant او د بنداهش مند mand

په اوستا کي چه د شپاړسو هیوادو نومونه راغلي دي، له دغو څخه دولس مملکت راگه ragha یاد شویدي چه درې قومه پکښې اوسیدل.[۱]

که څه هم د دې ځاي د جغرافیائي موقعیت په تعین کي پوهان مختلف دي، ځني ئې ري او آزربایگان بولي، ځني وائي چه د بدخشان راغ دغه ځاي دي مگر دلته ئې زموږ له جغرافیائې موقعیت سره هیڅ اړه نسته، فقط د یوه اوستائي لغت په حیث ئې اخلو او په پښتو کي ئې مومو.

کټ مټ دغه راغه اوس په پښتو کي د وښو شین دښت ته وایي، چه په پونده و خلقو کي دا لغت ډیر مستعمل دي، خوشحال خان وایي:

چه تل مي ځاي شول غرونه رغونه　　　　زه دا په چا پسې مجنون صفت یم

**سپین غر Spinghar**

دا غر د هیواد په شرقي ولایت ننگرهار کي ډیر مشهور غر دي، ځکه چه هر وخت ئې سر په واوره پټ وي، نو سپین غر بلل شویدي او دا نوم له قدیمه تر اوسه هم سته.

په اوستا کي دا غر د سپیتاگونا کري Spita-gaona-gairi ذکر شویدي[۲] او لکه پوهان وایي دغه اوسني سپین غر دي..له دې نامه څخه هم پښتو کلمات په اوستا کي موندل کیږي او دا نوم په ښکاره درې ټوټې لري:

۱- سپتا: چه دمخه ئې شرح ولیکله شوه، او دغه پښتو سپین دي.

۲- گونا: دا کلمه په پښتو کي د مخ رنگ او بڼي ته وایي، مثلاً احمد زړه گونه راغي یعني د مخ رنگ ئې ژړ و، یو شاعر وایي: ژړه گونه گرزم په دربار کي د خوبانو. نو ئې پخوانی مفهوم ښایي چه مطلق رنگ او ډول و.

۳- دگیري د کلمې شرح د کتاب په لومړی ټوک کي ولیکله شوه، چه دا قدیمه آریائي کلمه او د پښتو اوسني غر ده، نو په مجموعي صورت د دې غره د نامه معنا داسي کیږي: سپین رنگی غر، چه اوس ئې د گونه کلمه

رنګ ئې ساتلي دي، د دوي بله مشهور وسله غشي او لینده وه چه غشي ته ئې ئي شو ishu وایه او د غشي کلمې ته ډیره نژدې ده.

## عمومي مشابهت اونزدیوالی

په تیرو دوو برخوکي تاسي ته ښکاره سوه چه عموماً پښتو ژبه لومړی له ټولو آریائي ژبو بیا په تیره له ویدي ژبي او سنسکریت او اوستا سره خورا مشابهت او نژدې والي لري تاسي ولیدل چه د ویدا او اوستا خورا مهم او عنصري مواد اوس په پښتوکي داخل دي، او د دې ژبي تاریخي اصالت ښکاره کوي.

اوس غواړو چه لږ څه دغه مشابهت او نژدیوالي په ښه ډول څرګندکړو، او خپل نظر له ویدا او اوستا څخه په تطبیقي ډول نورو آریائي ژبو ته هم واړوو. الفاظ اوکلمات لکه نور حیه ذوات او ژوندي اشخاص دغسي مستقل، شخصیت او ځانته ژوندون او د ژوندانه اصول او قوانین لري د لغاتو او الفاظو لپاره موږ عناصر پیدا کولاي سو لکه له تیرو ابحاثو څخه چه ښکاره سوه د مختلفو ژبو د الفاظو عنصر یو وي او دغه عنصر په خپل فطرت کي معاني او مفاهیم لري چه په هره ژبه کي تطبیق کیدلاي شي په حقیقت کي کلمات او الفاظ له اصواتو څخه جوړیږي. دوه درې ږغونه د یوې معنا لپاره عنصر ګڼل کیږي او نور اصوات چه ور سره زیات سي معنا ئې تغیر په مومي.

د مثال په ډول د (س،ت) اصوات په خپل فطرت کي د توقف، دریدلو او استقامت مفهوم لري نو د علم لسان په اصطلاح دغو اصواتو ته د دریدلو او توقف او استقامت د مفهوم "عنصر" ویلاي سو. په پښتو ناسته کښیناستل، دغه عنصر لري، د پاړسو (ایستادن) هم له دغي ریښې څخه دي د انګلیسي stand, stay, statue, station, stead, stool او نورکلمات دغه عنصر لري، عین دغه عنصر په سنسکریت کي هم سته[1] په اوستا او سنسکریت

غويې د آريائيانو د ژوندانه مهم عنصر ؤ ځکه چه دوي زراعت پيشه قوم ؤ په پښتو کي د دې نوم عنصر (غ،و) دي، په سنسکريت کي ئې ګئو مفرد ګاوس جمع ده په پښتو د غويو ګلې ته ګورم وايي.

دغه ماده په ټولو آريائي ژبو کي سته په زړه جرمني ئې (چو) په نوي جرمني ئې (کر) په انګريزي ئې کاؤ بولي په سلاوي ژبه ګوویاوو (ګورم) او په نوي سرويني ژبه ګوو دار (غوبه) په روسي ګوو يا دينا (د غوايي غوښي) او ګوسو پودين "بادار" ګوس پود خداى، ګوس پوو‌ار "د جنوبي سلاو حکام" بلل کيږي يعني د غويو خاوندان چه په زړه سنسکريت کي "ګوپ" نوميدل له دغي مادې څخه د سنسکريت ګوتر (غوجل) هم دي چه وروسته پر کورني او خاندان اطلاق کيدي.[1]

په خپله په پښتو کي د "غويي" له نامه څخه ډير دغسي نومونه سته چه عنصر ئې (غ،و) (ګ،و) دي مثلاً، غويي، غوا،غوجل (آغيل)، غوبه (پاده بان) غوبون، ګوروان (پاده بان)، غوباړي (مګس حيوانات)، ګوبا (زن ګاو هيکل احمق)، ګورم، ګوار، ګوير (پاده) او نور. که دغه کلمات موږ له لوړو آريائي کلماتو سره کښيږدو، يا ئې د اوستا له (ګو) د پهلوي له (ګوو) او د پاړسو له (ګاو، ګو) سره تطبيق کړو، د آريائي ژبو نژديوالي سره معلوميږي. وګورئ په پښتو ګوار، ګوير، ګورم سره يو شي دي، دا کلمه په سنسکريت کي ګواره وه چه په پاړسو کي (ګاواره سوه، چه کټ مټ هغه ګوار ته نژدې ده، ابن يمين وائي:

چون شير شرزه يک تنه مي باش در جهان　　　　　مانند ګاو چشم زګاو اره بر مدار

ميکس مولر مشهور د ژبو عالم ليکي "چه شعرا له الفاظو څخه اشعار او نظمونه جوړوي که موږ هر لفظ ته په غور وګورو، نو به ښکاره سي چه دغه لفظ هم يو نظم دي، ولي چه د دې چاري ثبوت کوي چه زموږ پلرو او نيکونو پخوا کوم کوم کار کړي او کوم خيال ئې په ذهن کي موجود ؤ، مثلاً د پتر (پلار) کلمه درې معناوي لري، (۱) غذا ورکونکي (۲) ساتونکي (۳) مشرتوب کونکي. دغه درې خيالات ټينګه اړه سره لري، او تعمق او ځيرتوب ځيني ښکاري، نو هر وخت چه موږ الفاظ په علمي ډول تجزيه کوو د انسان د دماغ ډير مهم رازونه او اسرات راته

واتړ او فادر چه د ټیوټن له فادر څخه جوړ شویدي، د ایتالوي پادري، او د فرانسوي پیر ټول د (پ،ت،ر) له عنصره مشتق دي.[1]

ما ma یوه ماده ده، چه په فطرت کي د (اندازه کولو، او ویشلو) معاني پراته دي، ځکه چه د مور وظیفه په کورنۍ کي دغه کارونه دي. تل غذا ویشي او اندازه ئې کوي، نو په ټولو آریائي ژبو کي دغه ریښه له دغه نامه سره ځي مثلاً د پښتو مور چه د لهجې په اختلاف (میر) هم بلله کیږي. گویا ریښه ئې هغه (ما) دی چه په نورو ژبو کي (ت،ر) هم زیاتیږي، د سنسکریت ماتار، د اوستا ماتر، د یوناني میتیر، د لاتین ماتر د سلاوي ماتر، د روسي ماتي، د جرمني متړ د انگریزي مدر، د ټیوټن موادئیر، د هسپانوي او ایتالوي مادري، د فرانسوي میر، دا ټول له یوه عنصره زیږیدیلي دي، بلکه ډیر نور کلمات هم لرو چه د (ما) له عنصره دي مثلاً (ماس) چه په پښتو ئې، میاشت او په پاړسو ئې (ماه) او په هندي (مهینه) بولي، په سلاوي ژبو کي (میاټس) ده، وجه تسمیه ئې دا ده، چه میاشت د وخت اندازه کول کوي او په اکثرو آریائي ژبو کي له دغي مادې څخه نوم جوړ شوی دي.[2]

د ژبو ابتدائي مواد هم دغه مور او پلار او د نورو خپلوانو نومونه دي، او په ټولو ژبو کي سته، نو ځکه د تطبیق کار هم لومړي له دغو نومو څخه شروع کیږي. ده مور او پلار تحلیلي څیړنه مو ولوسته، اوس به یو څو نور لغتونه هم شروح کړه سي:

ورور، خور: د ورور عنصري حروف (و،ر) دي، واو په (ب) هم اوړي کله (ت) یا (د) هم ور سره راځي، اما خور (خ،ت،ر) دي، چه (خ) په (هـ) او بیا په (س) اوکله په (ش) اوړي (ت) کله وي کله نه وي.

| پښتو | ورور | خور |
|---|---|---|
| سنسکریت | بهراتر | سواسار |
| اوستا | براتر | هونهار |
| یوناني | اردرفوس | اردفي |



| | |
|---|---|
| اوستا | دگدهر |
| پاړسو | دختر |
| يوناني | تهگاتير |
| جرمني | ټوختېر |
| انكليسي | ډاټر |
| آئرش | ډير |
| سلاوي | ډشټر |
| روسي | ډاچر، ډاچ |

ليور: د ميره ورور ته ليور وايي، عنصري توري ئې (ل=د) او (و،ى) او (ر) دي په لاندي ډول:

| | |
|---|---|
| پښتو | ليور |
| سنسكريت | ديور |
| پاړسو | ايور |
| روسي | ديور |
| ليتواني | ديورس |
| يوناني | داير |
| لاتين | ليور |

(مر، مړ) په سنسكريت كي (م،ر) د مرگ او هلاک لپاره عنصري بڼغونه دي، د پښتو (م،ړ) هم كټ مټ دغسي دى، مړ (مرده) مړتوب (مردگي) مړام (مرده مانند) مړامجا (تنبل مانند مرده) مړينه (مرگ) ټول له دغي ريښې ځخه دي، دا عنصري توري په اكثرو آريائي ژبو كي د (هلاكت او مرگ) لپاره مستعمل دي د پاړسو (مرگ، مرده) هم ورته نژدي دي، اما په نورو آريائي ژبو كي ريښه يې راز سته.

| | |
|---|---|
| جرمني | میر |
| انګلیسي | میر |

شکره، کند: ګني د افغانستان د مشرقي خواؤ مخصوصه میوه ده، په هند کي هم ډېر دي د ګني څخه خوږه ماده جوړوي چه په پښتو کي (ګوړه، شکره) بولو، په سنسکریت کي نوم شرکیرا sharkara دي، دا نوم داسي عام دي چه په سامي ژبو کي هم سکر راځي، په اروپائي ژبو داسي دي:

| | |
|---|---|
| لاتیني | سکارم |
| انګلیسي | شوګر |
| سلاو | سکهر |
| جرمني | زوکر |
| ایتالوي | زکیرو |
| هسپانوي | اشوکر |
| فرانسوي | سکري |
| عربي | سکر |
| پاړسو | شکر |

وګوري، عنصري توري ئې (س=ش) او (ک=ګ) او (ر) په ټولو ژبو کي سته علاوه پر دغه د شکري پاک کړي ډول ته (کند) وایو، چه په پاړسو (قند) شویدي، دا نوم خورا زوړ دي، په سنسکریت کي کهانډ khand و.[1] په اوستا کي (خنذه) شرینۍ ته وایي ځکه چه شکره او قند له هنده څخه عربستان ته وړل کیده، نو عربو سنسکریت کهانډ معرب او په (قند) تبدیل کړ[2] او قندید ئې هم وباله، چه جمع ئې قنود او قنادید راځي[3] په اروپائي ژبو کي هم کیندي او سکري کینډي سته، چه زموږ (قند) ته وایي[4] که په غور ورته وګورو عنصري توري ئې (ک=ق) او

# د تطبيق جدول

د دې خيړني په پاي که دا جدول چه د آريائي ژبو تطبيق ښکاره کوي د کتلو وړ دي. دا جدول هم د دغو ژبو خپلوي او سره نژديوالي ښه څرگندوي، او د پښتو قدامت هم زيادوي.

| پښتو | سنسکريت | اوستا | پاړسو |
|---|---|---|---|
| غنم | گودهوم | | گندم |
| ښاخ | شاکها | | شاخ (درخت) |
| پاڼه | پرڼه | | برگ |
| اوبه | آپ | آپه | آب |
| مخ | موکه | | روي |
| غوږ | گرڼه | | گوش |
| زوړ | جوړن | زورا | پير،کهنه |
| څرمن | چرمن | چرمن | چرم |
| کپرۍ،کوپړۍ | کپنال | | کله |
| کشر | کنشتهتير | کاسو | کهتر |
| مشر | مشر، مهتر | | مهتر |
| نو،نوم | نابهي | نافيه | ناف |
| ورون | راوني | رانه | ران |
| ړون، روڼ | روچن | راوچه (روز) | روشن |

| خر | کهر | | خر |
|---|---|---|---|
| نوم | نام، نامن | | نام |
| نوي | نو | نوا | نو |
| انگار | انگار | | اخگر |
| کال | کال (بمعني وقت) | | سال |
| وار (نوبت) | وار | | بار |
| کشپ | گچه چپ | | سنگ پشت |
| کان (معدن) | کهان | | کان |
| کله | کدا | کدا | کي |
| زوم | جاماتر | زاماتر | داماد |
| غر | گیری | گیری | کوه |
| غرمه | گهرمه | گرم | چاشت |
| جینۍ (دختر) | جینی | جینی (زن) | زن |
| ژۍ | جیا | جیا | زه |
| ځمکه | جماکه | زیم | زمین |
| ژبه (جبه) | جهوا | هرو | زبان |
| تود | تاپ | تپت | گرم |
| لس | دش | دسن | ده |
| ملا | مدهی | میدیه | کمر |
| شپه | شپ | خشپ | شب |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ښار | | شوتیره | شهر |
| پوت[1] | پوتره | پوتراو | پسر |
| نیکه | | نیاکه | جد |
| تره (مذکر) ترروۍ (مونث) | بهراترویه | براتوپریه | عم، عمه |
| سخر، خسر | سوسوره | هوسوره | خسر |
| ژمی | هیم (برف) | زیم، زیار | زمستان |
| غښتلي | ستاتر | خشتاوي | قوي و دلیر |
| دښت | دش | دش | دشت |
| غوا | گئو | | ماده‌گاو |
| سپی | شوک | شپان | سگ |
| بزه، وزه | آج | بوزیه | بز |
| ستن | ستهوڼ | ستونه | ستون |
| وینی | شونی | وهونی | خون |
| نر | نر | | نر |
| ماښام | شایم | | شام |
| کرښت | کرشټ | | کشت |
| بلگ | ورک | | برگ |
| زنگل | جنگل | | جنگل |
| ورجي | بریهی | | برنج |

# پنځمه برخه

پښتو او سنسکریت او اوستا ته مقایسوي کاته،
او په اساسي اصولو کي مشابهت
(۱) ږغپوهنه، فونولوژي
صایت توري ــ زورکي ــ مقایسه - صامت توري -
د اصواتو تطبیق له سنسکریت او اوستا سره،
(۲) تلفظ
ابتداء په ساکن ــ خج یا ایکسینت
(۳) گرامر
اسماء - کمیت - جنس - اعداد - افعال - د تانیث حروف -
د نفي حروف - دکلماتو د ساختمان اصول

ضمایم

# ږغپوهنه Phonology

## (۱) ږغونه او توري

د ژبي اساس هغه ږغونه او اصوات دي، چه له خولې څخه را وزي، دا اصوات چه سره یو ځاي سي، یوه کلمه ځیني تشکیل کیږي. د اصواتو او ږغو د ښکاره کولو لپاره ځیني اشکال وضع شوې دي، چه هغه موږ حروف او توري بولو.

هره ژبه ځانته ځیني مخصوص اصوات لري، او ځیني اصوات بیا د اکثرو ژبو تر منځ مشترک دي، د ژبو د مخصوصو اصواتو د مقایسې له خوا موږ کولاي سو، چه د دوي نزدیوالي یو له بله ومنو.

په ټولو ژبو کي ځیني توري صایت (ږغیز) وي، چه د دوي په واسطه د نورو صامتو توریو تلفظ کیږي او دغه لومړي ډول توریو ته چه د تلفظ واسطه دي، حروف علت vowels وایي، دوهم ډول توري چه صامت او صحیح دي، حروف صحیحه consonants ئې بولي.

دلته زما مقصد دا دي، چه پښتو او سنسکریت او اوستا ته د اصواتو او ږغونو د مقایسې په سترګه وګورم او تهجي حروف ئې سره پر تله کړم.

### صایت توري (حروف عله) او حرکات vowel system

د پښتو په الفبا کي ږغیز توري یعني هغه حروف چه د صحیحو توریو د تلفظ لپاره کار کوي، اساساً درې دي (ا، و، ی) دا توري هم په لوي سرکي هر یو دوه ډوله ږغ لري، لنډ ږغ، او اوږد ږغ.

| توري | لنډ بږغ (د حرکت حالت) | اوږد بږغ |
| --- | --- | --- |
| الف | زور لکه بر، لر | (آ) لکه آس، آره<br>(ا) لکه باد، لار |
| و | پیښ (و) لکه سر (سور) لر (لور)<br>پل (پول) | مجهول واو: لور، پور، سور |
| ی | زير(-) لکه تر (تير)<br>منه (مينه) | مجهوله ياء: تير، مينه |

**زورکي يا مخصوص حرکت**

لکه لوړ چه وويل سوه، د پښو حروف علت درې دي، او هر يو دوه حالته لري، چه ټول شپږ سي، د درو حرکاتو تر منځ يو بل حرکت هم سته، چه موږ ئې زورکي بولو، دا حرکت اصلاً د زور او زير او پيښ تر منځ يو مخصوص صوت دي، چه د درو حروفو علت صوت، پر درو نورو اقسامو ويشي په دې ډول:

۱- د الف سره (آ) لکه تر، پر، بر چه دلته د الف په نمايندګي د حرکت کار ورکوي، او که د کلمې په پاي کي راسي، نو ئې د اظهار لپاره (هـ) ليکله کيږي، له دغه جهته (هـ) هم که حرکي کار ورکي، له صايتو حروفو څخه شميرله کيږي. مثلاً ښځه، پسه چه تر (هـ) دمخه زورکی دي. او (هـ) ئې فقط په اعرابي کيف ليکله کيږي دغسي (هـ) چه په پښتو کي ډيره ده، له حروف علت څخه ګڼله کيږي او په درج او ترکيب کي د حروف علت حکم پر جاري کيږي.

۲ـ الف تر زور وروسته ولاړ الف. لکه کال، بار چه دمخه حروف ئې زور لري.
۳ـ الف تر الف وروسته لکه آس، آره چه دمخه حروف ئې هم زور لرونکي الف دي.
٤- الف د پڅ حرکت په شکل، چه زورکی دي، لکه کر، بل، بر، چه د (ک،پ) صوت په منځني ډول ښکاره کوي، او په پښتو لیک کي اکثراً (هـ) نمایندګي کوي.

(و)

٥- لنډ معروف واو د حرکت په شکل چه (پیښ) دي لکه کر (کور) بر (بور) چه د (ک،ب) صوت ښکاره کوي او لنډ ږغ لري، او کله د کلماتو پاي ته هم راځي لکه پاو، نیاو.
٦- اوږد واو مجهول چه له دوو پیښو څخه جوړیږي، لکه کور، بور چه اوږد ږغ لري.
٧- واو چه دمخه ئې زور وي، لکه څور، بور، چه د (او) ږغ لري.
٨- واو چه دمخه زورکي وئ لکه کتو چه د (او) ږغ لري.

(ي)

٩- لنډه معروفه یا د حرکت په شکل چه (زیر) دي، لکه تیر، پیر، چه د (ت،پ) ږغ ښکاره کوي، او کله ئې ږغ د کلمو په پاي کي مطلق وي، لکه پاي، ځاي.
١٠- اوږده مجهوله یاء چه له دوو زیرو څخه جوړیږي، لکه تېر، پېر چه اوږد ږغ لري.
١١- یاء چه دمخه ئې زور وي لکه ښی، تی چه د (ای) ږغ لري.
١٢- یاء چه دمخه زورکی وي لکه ښۍ، تی چه د (ای) ږغ لري.

له لوړي څېړني څخه تاسي د صایتو حرفو ١٢ شکله زده کولاي سواي، دغه دوولس شکله، پر اساسي درو ږغو بنا کیږي، ځکه چه صایت حروف او د دغو ږغونه د ژبي د فونیک phonics (ږغپوهني) اساس دي نو سړی کولای سي، چه د مقایسې او پر تللې لپاره کار ځیني واخلي.

د دغې لوړې څېړې د څېړنې لپاره لاندې ښتو حروف، علت او ږغونه ئې له سنسکریت او اوستا سره پر تله

له دوو صائتو توریو څخه مرکب آریائي ږغونه[1] چه ای ai او au وه، او په اوستا کي اې +ae او ao لوستل کیده، هغه وخت چه د هندگرامر پوهانو واخیسته، نو ئې په اې E او O تبدیل کړه، اما هغه اوږده ږغیز مرکبات چه آي ai آو au وه په لنډ دول ئې ai-au وویل.

مثلاً د اوستا ډئیو daevo د سنسکریت ډیوه devah

د اوستا هومو houmo د سنسکریت سومه somah

د اوستا یوکسایس uxsais د سنسکریت یوکتهي ukthaih

د اوستا گاوش gaush د سنسکریت گئوه gauh

د هندي ایراني دورې د واویل سیستم سادگي له دې څخه ښکاري، چه فقط د aa (ا ـ آ) ږغونه دوني ډېر او قوي وه، چه د هندو اروپائي ټولو صائتو توریو پر ځاي ولاړ وه، مثلاً د E-O-A-U پر ځاي فقط A اود د E-O-A پر ځاي فقط آ A ویل کیدئ، او دغه دوولس هندو اروپائي ډفتونگه Au-ou-eu-ai-oi=ei=au-ou-eu-ai-ei-oi ټول د سنسکریت په څلورو ږغو Au-Ai-O-E کي سره یو ځاي کیږي.

له لاندي جدول څخه د اصواتو مقابله ښه معلومیږي:

| هندو آروپائي | سنسکریت |
|---|---|
| i=oi-e | E-i |
| لکه یوناني leipi چه وروسته | rekah=recati |
| loipei وروسته elipa سو | aricat |

په دې ډول د سنسکریت واویل سیستم له قدیمه پر دغو ږغو باندي بنا دي.[2]

A:A-I.E.Ai.U.O.Au.R.Ar

## (الف)

۱- زور په سنسکریت او اوستا کي سته، خو د زیر او پیښ تر منځ یو صوت لري. نو ځکه باید د پښتو زورکی ته نژدې وګڼل سي، اما اساساً زور او زورکی د پښتو له پلوه دوه بیل بڼغونه دي، چه د کلماتو معاني هم اړوي لکه: تِل، تَل، بِل، بلَ او نور. د الف وچ بڼغ هم عام دي.

۲- د الف اوږد بڼغ (آ A) هم سنسکریت هم اوستا لري او د دې لپاره چه له هغه بل الف څخه ئې تفریق وسي نو په دواړو ږغوکي بیل شکل ځان ته لري.

## (و)

۱- واو معروف د حرکت په شکل (u) په دواړو ژبوکي لکه پښتو شته، او ځانته بیل شکل هم لري.

۲- د واو، بل صوت (u) په اوستا او سنسکریت کي سته، چه په پښتوکي دا بڼغ نسبتاً اوږد او د مجهول واو په شکل دي، چه نژدې دغه مجهول آواز ته ئې هم دغه ژبي لري.

۳- تر واو دمخه که زور وي دا بڼغ په سنسکریت او اوستا دواړوکي سته (au).

٤- تر واو دمخه چه زورکی راسي، دا صوت هم په تخمیني ډول (ښائي چه کټ مټ نه وي) په دغو ژبوکي سته ځکه چه د اوستا هغه (au) په سنسکریت کي بل بڼغ لکه (ai) مومي چه دغه پښتو بڼغ ته نژدې دي.

## (ی)

۱- لکه واو، یا هم دغسي ده چه معروف بڼغ ئې د زیر په شکل په دروسرو ژبوکي سته، او په سنسکریت او اوستاکه بیل شکل هم لري.

۲- بل بڼغ ئې اوږد دي چه موږ مجهوله یا ورته وایو، او په سنسکریت او اوستاکي دا بڼغ هم تقریباً پښتو ته نژدې سته.

۳- تر یا دمخه چه زورکي راسي، دا صوت هم په تخمیني ډول په دواړو ژبوکي سته.

دلته تر هر څه دمخه باید په دې پوه سو، چه د ژبو په صوتي سیستم کي د محیط او اقلیم او اجتماعي ضروریاتو اثر دوني دي، چه په نژدو اقلیمو کي دغه ږغونه سره اوړي لکه ژبه چه احتیاج پیدا کړیده دغه ږغونه هم ضرورت منځ ته را باسي، مثلاً یو توري په یوه ځاي کي خلق یو راز وائي، بل ځاي هغه توري بل ډول ږغ لري، دغه طبیعي احتیاج دي چه ژبي او د ژبو ږغونه سره اړوي.

## مجرد ږغونه او مرکب ږغونه

د صامتو توریو ږغونه موږ پر دوه ډوله ویشلاي سو، یو هغه ږغونه دي، چه اساساً او پخپله یو ږغ او مجرد صوت وي، له یوه مخرجه څخه په یوه وار راوزي، دغو ته موږ مجرد ږغونه او یوازیني توري ویلاي سو.

ځیني داسي ږغونه هم په ژبو کي سته، چه دوه ږغه سره گډ شوي او یو رنگ ئې موندلي وي، داسي ږغونه موږ مرکب گڼو او هغه توري چه نمایندگي ئې کوي، گډ توري ئې بولو.

د ژبو د تطبیق او نشوونما به سلسله کي مجرد اصوات لمړني دي، وروسته چه په نویو خلوکي لویږي، او نویو محیطو ته ځي په ځینو تورو نوي اصوات گډیږي، او مرکب صورت مومي، د پښتو ژبي الفباء ته چه سړی ځیر شي، له دیرشو توریو څخه مجرد اصوات دغه دي:(ب،پ،ت.ټ،ج،چ،خ،ځ،څ،د،ډ،ر،ړ،ز،ژ،س،ش، غ،ک،گ،ل،م، ن).

اما څلور صایت توري (ا،و،هـ،ی) خو بیل دي، د صحیحو او صامتو حروفو په ډله کي نه شمیرل کیږي، نور نو دغه توري مرکب صوتونه لري (ږ،ښ،ڼ)

(ڼ) یو خیشومي ږغ دي، چه له (ړ) او (ن) څخه مرکب شوی دي:

ړ ← ڼ ← ن

او (ږ، ښ) داسي توري دي، چه مختلف اصوات لري، او په ډول ډول اداء کیږي، په حقیقت کي مبدا، هغه اساسي او مجرد توري (ژ، ش) دي، چه د نورو توریود ترکیب په سبب ئې ږغونه گرزیدلي دي.




په دې نقشه کي د دوو توريو گڼه صوت په (=) سره د دوي تر منځ ښکاره سوي دي، وگوري د (ژ) مرکب ږغ داسي تغير مومي:

ژ ← (ژ=ږ) ← ږ ← (ږ=گ) ← گ

اما د (ش) ږغ هم داسي مرکب کيږي:

ش ← (ش=ښ) ← ښ ← (ښ=خ) ← خ

اوس چه تاسي ته د مرکبو او مجردو اصواتو تشريح وسوه، نو به ولاړ سو، د ږغو د مقايسوي بحث comparative phonology پر اساس به صحيح او صامت توري هم د سنسکريت او اوستا سره وگورو.

چه هر ډول له دغو څخه پنځه توري لري.[1]

اما په دغو توريو کي اکثر مرکب توري دي، چه له مجرد ږغ سره يو د ( هـ) سپک ږغ ملګري کيږي، مثلاً (که، ګه، چه، جه، ټه، ته، دهـ، په، به) نو ځکه موږ دا ويلاي سو، چه اصلاً آريائي ږغونه چه په اصلي آريائي ژبه کي وه، هغه مجرد ږغونه دي، چه د پښتو په اصلي حروفو کي سته دغه د ترکيب صورت ئې وروسته موندلي دي او دا اصوات په پښتو کي هغه وخت وي چه د حرفو حرکت زورکي وي. په دغه صورت کي مرکب ږغ مومي چه لکه نيمه (هـ) داسي ويل کيږي نو ګويا هر حرف که په زورکی ووايو د (هـ) يو سپک صوت مومي چه هغه موږ نه ليکو.

دا هم بايد ووايو چه د مرکبو اصواتو طبيعت شرقي دي نه غربي يعني له بخدي څخه غربي خوا ته تر اروپا پوري مرکب اصوات چه د (هـ) په خلط جوړ شوي دي لږ دي بلکه سته هم نه بالعکس د بخدي شرقي خوا ته په هند کي دا ږغونه ډير دي او سنسکريت او نوري هندي پراکريت ژبي ټول داسي مرکب ږغونه د (هـ) به خلط لري. پښتو موږ پوره غربي يعني له ايراني څانګي څخه نسو بللاي چه دغه ږغونه په نيم ډول پکښي سته، او هم ئې شرقي يعني هندي نسو ګڼلاي ځکه چه لکه هندي ژبي مرکب ږغونه ئې پوره او بشپړ ندي.

### د اصواتو تطبيق

دمخه د پښتو ژبي د الفبا مجرد او مرکب ږغونه وپيژندل سوه اوس هغه ټول د سنسکريت او اوستا له اصواتو سره لاندي تطبيق کوو.

ب: په دواړو ژبو کي دا مجرد صوت سته. سنسکريت ئې مرکب صوت (ب، هـ) هم لري چه په اوستا کي نسته.

مثالونه: د اوستا بغه bagha (خدای) مجرد ږغ B

اوستا: ت لکه تنو tanu (تن) مجرد ږغ T

اوستا: تهه لکه تهوخش thvaxa (یو نوم دي) مرکب ږغ TH

سنسکریت: ت لکه تاپ tap (تود) مجرد ږغ T

سنسکریت: تهه لکه تهالي thali (تالی) مرکب ږغ TH

مرکب ته نزدې پښتو ږغ لکه: تل (همیشه) تلل (وزن کردن) ت زورکي لري.

ټ: اوستا دا ږغ نلري، اما سنسکریت ئې هم مفرد ږغ T او هم مرکب ټهه TH لري مثالونه:

سنسکریت: ټ لکه ټسر tasar (ټیسر) مفرد ږغ T

ټهه لکه ټهانو thanu (ټانه) مرکب ږغ TH

مرکب ته نزدې پښتو ږغ لکه: کوټل (کوفتن) ټهل (تحمل) ټ زورکی لري.

ج: په اوستا او سنسکریت کي سته چه مرکب ږغ هم په سنسکریت لري (جه) JH

اوستا: ج لکه جفر jafar (ژور) مفرد ږغ J

سنسکریت: ج لکه جاتر jatru (زایر) مفرد ږغ J

سنسکریت: جهه لکه جهاټ jhat (سایبان) مرکب ږغ JH

مرکب ته نزدې پښتو ږغ: جر (اسم صوت) جګ (بلند) چه زورکی لري

چ: په اوستا او سنسکریت کي سته چه (چه) مرکب ږغ هم لري مثلاً

اوستا: چ لکه چش chash (چشیدن) مفرد ږغ CH

سنسکریت: چ لکه چاتر chatur (لایق) مفرد ږغ CH

سنسکریت: چه لکه چهند chhand (عروض) مرکب ږغ CHH

مرکب ته نزدې پښتو ږغ لکه چغ (پردهٔ ني) چخ (خلیده) چ زورکی لري.

خ: په اوستا کې سته چه یو مرکب دوله ږغ یې هم لري، خو khy مثلاً مفرد ږغ ئې لکه خرتو khratu (خرد)

ځ: دا صوت د (ز،ج) تر منځ ویل کیږي، په پاړسو کي عوض (ج) دي، مثلاً جان=ځان. هغه څوک چه دا صوت نسي اداکولائ، عوض ئې (ز) وایي، له دې معلومیږي چه د دغو دوو توریو له جنسه دي.

په سنسکریت کي دا ږغ نسته، بلکه د (ج) خوا ئې غالبه ده، مثلاً روج په سنسکریت کي روز ته وایي، چه په پښتو ئې روځ بولي، ارز په پارسي قدر او قیمت ته وایي چه (ز) په (ج) هم آوړي ارج او ارجمند ځیني جوړیږي، په سنسکریت کي هم ارج په دغه معنا دي. د پښتو ارځ او ارځیدل هم کټ مټ دغسي دي. مګر (ز=ج) په (ځ) اوښتي دي، چه کله په (ز) هم ارزیدل ویل کیږي.

له دې څخه معلومیږي چه د (ځ) ږغ اصلاً په مرکزي آریائیانو کي و، مګر په هند او ایران کي په غوض نور نور ږغونه دریدلي دي. اوستا یو حرف لري، چه ږغ ئې (ځ) ته نږدې دي، هغه (ذ dh) دي، چه دا حرف هر وخت د کلماتو منځ ته وي مثلاً پوخذه pukhdha (پنځم) چه هغه (ذ) په پښتو (ځ) بدل شوې دي.

د: په سنسکریت کي غاښیز حرف دي چه په اوستا کي هم سته دا صوت عموماً په ټولو ژبو کي مشترک دي، سنسکریت ئې مرکب صوت (دهـ) هم لري مثلاً:

اوستا: (د) لکه درفش drafsha (بیرق) مجرد ږغ D

سنسکریت: (د) لکه دته datta (داده) مجرد ږغ D

سنسکریت: (د هـ) لکه دهرم dharm (انصاف، مذهب) مرکب ږغ Dh

مرکب ته نږدې پښتو ږغ لکه در (بطرف مخاطب) دي (هست) دال زورکی لري.

ډ: دا حرف اوستا نلري، په سنسکریت کي سته او مرکب صوت (ډهـ) هم لري، داسي معلومیږي، چه د (ډ) طبیعت شرقي دي، که بخدي د آریا مرکزي ځاي وګڼو نو غربي خوا ته دغه توري نه ویل کیږي، شرقي خوا ته سته مثلاً:

سنسکریت (ډ) لکه ډاین dayan (ساحره) مجرد ږغ D

سنسکریت (ډهـ) ډهګ Dhig (خوا، نږدې) مرکب ږغ Dh

پښتو: (ړ) لکه ړوند، پړ، پړاو، او نور.

ز: سنسکریت دا ږغ نلري، په عوض کي (ج) وایي لکه (روز-روج) یا (زانو=جانو) یا (زن=جني) د دې توري طبیعت غربي دي او په پښتو کي متعدد ساري لري، مثلاً کله په (ژ) کله په (ج) کله په (ځ) اوړي. مثال:

اوستا: (ز) لکه زاته zata (زاده) مفرد ږغ Z.

ژ: دا ږغ هم سنسکریت نلري، او په پښتو کي مستقلاً موجود دي، اوستا ئې هم لري. مثلاً ژنو znu (زانو). دا حرف هم په پښتو کي د (ز، ج) سره خپلوي لري، مثلاً (ژبه=زبه=جبه) چه درې ډوله ویله کیږي. خو طبیعت ئې غربي دي، د شرق خوا ته چه نزدې کیږي، په (ج) اوړي، لکه د پارسي (اژدر) او د سنسکریت اجگر.

ږ: لکه دمخه چه تاسي ته وویل سوه، دا توري مرکب صوت لري، نو ځکه متغیر دي، له تیري نقشې څخه ئې تاسي ته د ږغ تغییر هم ښکاره سو، په سنسکریت او اوستا کي د دې نظیر نسته، له (ژ،ج) سره اوړي مثلاً:

کږ=کج=کوږ یا اژدهار=اږدهار اما پخپله پښتانه ئې د (گ) ساري گڼي.

س: په سنسکریت کي له مهمو حروفو څخه دي، په اوستا کي هم سته په اکثرو ژبو کي دا ږغ عام دي، مثلاً

سنسکریت: (س) لکه سات sat (اوه) مجرد ږغ S

اوستا: (س) لکه ستو stu (ستایل) مجرد ږغ S

په پښتو کي دا ږغ (خ) ته نزدیوالي لري او کله کله سره اوړي هم مثلاً سرگند، خرگند.

ش: دا هم مهموس حرف دي، په سنسکریت او په اوستا کي سته مثلاً:

اوستا: (ش) لکه هورشته hvarshta (ښه رشه) مفرد ږغ Sh

سنسکریت: (ش) لکه شاپت shapit (معلون) مفرد ږغ Sh

ښ: دمخه مو دا توري په مرکب صوت سره در وښوه د دې صوت نطایر په آریائي ژبو کي سته ، مثلاً روسي کټ مټ (ښ) لري، دغسي هم په اوستا کي یو مشدد (ش) سته چه شکل ئې هم بیل دي مثلاً شاته shata (یعني ښاد) چه په پارسي (شاد) شوی دی، دا ږغ د پښتو (ښ) ته نزدې دی، او په پښتو ئې هم عوض دغه (ښ) دی.

نو د (غ) بږغ په پښتو کي مجرد و، مګر په شرقي هجرت کي د هند خوا ته دا بږغ (ګ) ته مایل سو، او یو راز صوت ځیني پیدا سو، چه د (ګ=غ) تر منځ دي، لکه داغ =داګه=شغال = شګال.

ک: په اوستا او په سنسکریت کي سته، چه بل مرکب ډول (که) هم لري. مګر د اوستا صوت ئې پښتو ته نزدې، او د سنسکریت بږغ ئې هم هغسي په حلق کي اداء کیږي، او لږ څه لیري دي. د دې توري طبیعت د (خ) خوا ته نزدې دي، او د سنسکریت بږغ ئې هم هغسي په حلق کي اداء کیږي. نو ګویا دغه (ک=که) شرقي لوري ته تل د (خ) نمایندګي کوي، ځکه چه شرقي آریائیان (خ) نشي ویلای.

اوستا: (ک) لکه کامه kama (کام) مجرد بږغ K

سنسکریت: (ک)= کاټ kat (کاټ) مجرد بږغ K

(که) = کهال khal (پوست، ډنډ) مرکب بږغ Kh

ګ: په اوستا کي مجرد بږغ (ګ) او په سنسکریت کي هم سته، مګر د سنسکریت بږغ ئې خورا په حلق کي ادا کیږي، چه کټ مټ د پښتو سره یو راز ندي او د حلقي توریو طبیعت هم دغه دي چه پخپل شرقي هجرت کي خورا پسې حلقي کیږي، مثلاً:

اوستا: (ګ) لکه ګامه gama (ګام) مجرد بږغ G

سنسکریت: (ګ) لکه ګوند gond (ګند) مجرد بږغ G

په سنسکریت کي که دا بږغ مرکب سي (ګه) نو (غ) ته نزدې کیږي، لکه دمخه چه وویل سوه.

ل: دا بږغ په اوستا کي نسته، او نه په زړه پاړسو کي و، مګر په پهلوي کي پیدا سوی دي. په اوستا کي عوض خپل قریب المخرج توري (ر) و، او په سنسکریت کي کله (ر) او کله (ل) وي په حقیقت کي (ل، ر) په اکثرو آریائي ژبو کي سره اوړي، د پښتو دیوال په پاړسو دیوار دي، چه په انګلیسي که هم دغه ریښه وال wall سته. د سنسکریت (ل) په اوستا کي د (ر) بږغ ورکوي مثلاً:

سنسکریت: شریلاس shrilas (شکلی...)

اوستا: (ن) لکه نافيه nafya (ناف، نو) مجرد ږغ N
اوستا: (ان) لکه انتر antara (اندر، دننه) تقريباً مرکب ږغ N
سنسکريت: (نه) لکه نابهي nabhi (نو، منځ) مجرد ږغ N
سنسکريت: (ڼه) لکه ورڼ vran (آماس) مرکب ږغ [1] N

## (۲) تلفظ Pronunciation

لکه دمخه چه وويل سوه، د پښتو او اوستا او سنسکريت د ږغيزو او صحيحو توريو تر منځ ډېر مشابهت دي، او په درو سرو ژبو کي د اعرابي حروفو په کومک د اصلي حروفو تلفظ کيږي، لاندي د تلفظ ځيني خصوصيات راوړل کيږي:

**ابتداء په ساکن**

په سنسکريت کي په ساکن توري ابتداء کيده، او لکه چه ځيني محققين وائي، دا خاصيت د آريائي ژبو دي، او هر څوني چه ژبي غربي خوا (يا سامي خوا) ته ميل کوي، دا خاصيت ځيني ځي.

پښتو او سنسکريت دا آريائي مذيت تر اوسه خوندي کړي دي، په اروپائي ژبو کي هم عمومي دي مگر په پارسي ژبه کي ښائي چه له دې جهته نسته، چه پر دغي ژبي د سامي ژبو اثر خورا ډېر لويدلي دي، ښائي چه پخپله په اوستا او لومړنۍ پهلوي کي په ساکن ابتداء کيده، مگر وروسته چه د سامي تمدن اثر پر ايران ولويد نو ابتداء په ساکن محاله سوه.

ډېر داسي کلمات په پارسي ژبه کي سته، چه يو زايد الف د تلفظ د سهولت لپاره په سر کي ور احول شوي

موسیقیت درلود، او د ټونیک tonic په رنګ و، د ږغ فشار نه و، او پخوا ئې درې ډوله درلوده (۱) لوړ خج udatta (raised) (۲) کښته خج anudatta (unraised) (۳) لوړیدونکي او ګښته کیدونکي خج the svarita (raising-falling) چه هغه لومړی ډول ئې د هندو اروپائي ژبو د خج سره ډیر مشابهت لري، او د سنسکریت خجونه اکثراً په شعر کي وه.

علاوه پر دغه چه له ایکسینت څخه په نظم کي کار اخیستل کیدي، او په ویدي قدیمو متونو کي هم موجود و، او وروسته هم هر وید ځانته د ایکسینت سیستم درلود، په عمومي ډول هم ټولو ویدي الفاظو پر یوه یا دوه سلایبلو باندي ایکسینت درلود، لکه چه په هندو اروپائي ژبو کي سته. او کله به هم په ترکیبي الفاظو کي ایکسینت مکرر کیدي چه غبرګ خج double accent ورته وایو. د سنسکریت د مرکباتو ایکسینت accentuation of compounds بیل احکام او اصول درلوده، او تقریباً په ټولو ګرامري احکامو کي ایکسینت بیل بیل اثر کاوه.[۱]

د اوستا په قدیمو نسخو کي (پر خلاف د ویدا) هیڅ ډول ایکسینت نه لیدل کیږي، او نه په لیک کي راغلي دي[۲] او له دغه جهته هم ایکسینت په پارسي کي خورا لږ مراعت کیږي. مګر په پښتو کي ایکسینت یو د تلفظ مهم رکن دي او ډیر کلمات په همدغه ذریعه کي څه هم په حروفو او حرکاتو کي سره یو وي، خو په خج سره بیلیږي، مثلاً وړي (برده) وړی (پشم) توري (حرف، تلخه) توری (ترائي) اته (مقیاس طول باندازهٔ یکدست) اته (هشت) چه له دې قسمه کلمات په پښتو کي خورا ډیر دي، او لکه ایکسینت چه په سنسکریت کي ډیر عمومیت درلود او عمومیت لري په ښتو کي هم کټ مټ هغسي دي.

نو سړي داسي ویلاي سي چه ایکسینت د آریائي ژبو یو مهم خاصیت دي، او ښائي چه په آریائي اصلي ژبه کي هم و، مګر وروسته چه ویدي او سنسکریت ژبه په هند کي د علم ذریعه وه، او د آریائیانو اکثر علمي او ادبي آثار هم نظم وه، نو په سنسکریت کي خج ډیر انواع ومونده، او په نظم کي ډیر داخل سوه.

### اسماء Nouns

د ژبي له اساسي ارکانو څخه نومونه (اسماء) دي چه د جملې په ترکیب کي هم دغه مواد ډېر په کار کیږي او د استعمال چاري ئې هم تفاوت کوي.

په پښتو کي اسماء ځانته مخصوص حالتونه لري چه په هر حالت case کي د هغه اسم په آخر پوري حرکات یا حروف نښلي لکه فاعلي، مفعولي، ندائي او نور حالتونه.

په سنسکریت او اوستا کي هم اسماء اته حالتونه لري، او په هر حال کي ځیني اسماء په آخر کي تغیر مومي. د اسم حالتونه په اوستا او سنسکریت کي دا دي: (۱) فاعلي nominative (۲) مفعولي accusative (۳) آلي instrumental (٤) مفعولي بالواسته dative (٥) علیت ablative (٦) اضافي یا ملکیت gentive (۷) ظرفي lacative (۸) ندائي[۱] vocative.

ښایي چه په آریائي ژبو کي دغه حالتونه له هند اورپائي مشترکي دورې څخه پاته وي، په پښتو کي هم اسماء دغسي حالتونه لري عمومي نومونه او مخصوصاً بیا هغه نومونه چه د پاي حروف ئې ږغیز (صایت) دي په مختلفو حالتو کي تغییر مومي او اکثر دغه ذکر شوي حالتونه د پښتو اسماء هم لري.

مگر له ځینو آریائي ژبو څخه دغه د حالتو په سبب تغیر وتلي، او دا قدیم خاصیت ئې بایللي دي مثلاً فارسي او انگلیسي دا خاصیت لږ لري.

### کمیت Number

په سنسکریت او اوستا کي نوم د شمیر له پلوه پر درې ډوله دي مفرد، تثنیه، جمع. مگر په اوستا کي تثنیه یو مخصوص کیف لري، چه د ظرفي حالت یو مخصوص شکل ښکاره کوي[۲] او عمومي نده.

مگر وروسته له آریائي ژبو څخه تثنیه ووتله او فقط مفرد او جمع پاته شول، په پښتو او پارسي او اکثرو اروپائي

### جنس Gender

سنسکریت او اوستا دواړو تذکیر او تأنیث درلود، او د جنس له پلوه کلمات سره بیلیده، په دواړو ژبو کي درې جنسه اسماء موجود وه:

۱- مذکر masculine

۲- مؤنث feminine

۳- مخنث neuter[۱]

داسي ښکاري، چه دغه د جنس gender تقسیم په اصلي آریائي ژبه کي هم وو، وروسته چه سنسکریت او اوستا او پښتو ځیني وزیږیدې، هم د دغو درو جنسو تقسیم پکښي پاته سو. په پهلوي کي هم د تذکیر او تأنیث لحاظ کیدي، مگر له پارسي ژبي څخه بالکل ووت. په ځینو اروپائي ژبو کي تر اوسه هم د مذکر او مؤنث وجود لږ او ډیر سته.

په پښتو کي هم لکه سنسکریت او اوستا مذکر او مؤنث اجناس موجود دي، چه لکه هغه ژبي مؤنثات ځانله نښانې او علایم لري، اما مخنث چه په الماني او روسي کي هم سته، هغه کلمه ده، چه ظاهراً د مؤنث علامه نلري، او په مقابل کي نر جنس هم موجود نه وي، مگر مؤنثه شمیرله کیږي، دې ته موږ اوس سماعي مؤنث وایو، چه د سنسکریت دگرامر په اصطلاح ئې مخنث بولي.

### اعداد Numerals

د اعدادو په نومو او ترتیب کي اکثر آریائي ژبي سره نزدې دي سنسکریت، اوستا، پښتو هیڅ بیلتون نه سره لري او په خاص ډول پښتو ور نزدې ده په عمومي هندو اروپائي ژبو او په سنسکریت کي له یوه تر لسو پوري اعداد بیل نومونه لري، وروسته پر عشري سیستم برابر، هغه تر لس گښته اعداد له ۱۰، ۲۰، ۳۰ او تر سله پوري ور سره یو ځای

twenty one او نور، مگر په پښتو او سنسکريت او اوستا کي تر آخره پوري لومړي احاد، وروسته عشرات ويل کيږي. لاندي د اعدادو د نومو جدول وگوري، چه پښتو ته څنگه نژدې دي.[١]

| سنسکريت | اوستا | پښتو | اعداد |
|---|---|---|---|
| ekam ايکم | aeva ايوه | يو | ١ |
| dva دوا | dva دوه | دوه | ٢ |
| tri تري | thri تهري | دري | ٣ |
| catvar چتوار | catwar چتور | څلور | ٤ |
| panca پانچه | panca پنچه | پنځه | ٥ |
| sas شش | shvas ښوش | شپږ | ٦ |
| sapta سپتا | hapta هپته | اوه | ٧ |
| asta اشتا | asta اشته | اته | ٨ |
| nava ناوه | nava نو | نه | ٩ |
| dasa داشه | dasa دسه | لس | ١٠ |
| visati ويشتي | visaiti ويسيتي | شل (ويشت) | ٢٠ |

| ۹۰ | نيوي | نوايتي navaiti | نوتي navati |
|---|---|---|---|
| ۱۰۰ | سل | سته sata | شتا sata |

په دې ډول پسله سله هم په درو سرو ژبوکي احاد تر عشراتو دمخه دي، او لکه د اعدادو نومونه چه په درو ژبوکي سره نزدې دي، نظم او قواعد ئې هم دغسي سره ورته دي.

**افعال Verbs**

په افعالوکي هم د سنسکريت او اوستا او پښتو مشابهت سره ډير دي، د زمانو اقسام او معروفو او مجهولو افعالو ډولونه، او د افعالو اوښتنه د سوابقو او لواحقو په واسطه، او ضمير او تصريف او تغير دا ټول هغه خصوصيات دي، چه په پښتوکي اوس هم سته.

د پښتو اکثر مصادر لکه سنسکريت يوه اسمي ريښه لري چه له هغه څخه بيا د اداتو په الحاق افعال بندکيږي، فقط فرق دوني دي، چه د پښتو افعال تثنيه نلري، او د سنسکريت افعال ئې لري، په دې خصوصيت کي پښتو له پارسي او اروپائي ژبو سره نزدې ده.

**د تأنيث حروف**

په سنسکريت کي هم لکه پښتو د تأنيث حروف سته، چه که کومه کلمه وغواړي چه مؤنثه ئې کړي، هغه حروف ئې پاي ته راوړي: (آـ ی)[۱] او په پښتوکي دا کار (هـ) ورکوي مثلاً خرـ خره، وزـ وزه، او نور.

**د نفي حروف**

په سنسکريت کي هم د نفي حروف لکه پښتو (آـ ن=يه ـ نه) دي، چه دا حروف په پښتوکي د نفي لپاره

معلول په علت ندي) په آریائي ژبو کي نه تطبیق کیږي، او که موږ پښتو ته وگورو، کلمات او الفاظ ئې عینا لکه اوستا او سنسکریت له ریښو څخه مشتق دي.

مثلاً اشوه چه په سنسکریت کي آس ته وائي، له (اش) او (وه) څخه جوړ سوی دي، (اش) تگ ته وایي او دا ریښه تر اوسه هم په پښتو کي سته هغه وخت چه خر یا آس شړي وایي (اشه=برو) او (اش) دگوچنو په ژبه بوده ته هم وایي، د سنسکریت (وه) یو لاحقه ده، چه مصدر اسم کوي.

نو د پښتو اش=آس=اسپه د سنسکریت (اشوه) دواړه له دغي ریښې څخه را وتلي دي، هم له دغي ریښې څخه (سپور=سور=سوار) جوړ سوي دي، چه (اسپ بار) وو.[1]

دغسي هم ډیر نور کلمات چه مثلا اوس په پارسي کي د بسیطو الفاظو په ډول راغلي دي، پخوا ئې ریښې درلودې. هغه وخت چه د سنسکریت او اوستا څخه پهلوي ته راغلي، د اشتقاق ریښې ئې ورکي شوې، مثلاً آزردن (ځورول) د دې مصدر ریښه په سنسکریت کي (جر) وه یعني زړیدل، ذلیل کول. (آ) چه سابقه ده د نزدی او طرف په معنا دمخه ئې راغله (آجر=آزر) سو، چه په پهلوي او پارسي کي آخر ته مصدري (دن) ور زیات سو، نو آزردن سو.[2] د پښتو ځورول او زړیدل هم دواړه دغه د (جر) ریښه لري، او دا مصادر د (ځور=زور= زوړ = جر) له ریښې څخه را وتلي دي.

د دې خبري لپاره یو بل مثال هم دا دي، چه نشستن پارسي مصدر مرکب دي، په سنسکریت کي ریښه (سد=ست) ده، (نی) سابقه ده، چه د کښته معنا لري نو کلمه (نی سد=نی شد) وه په پلهوي کي آخر دال په (س) واوښت، او مصدري علامه ور سره ملگرې سوه (تن) نی شستن سو، چه په پارسي کي (ی) هم حذف سوه، نشستن پاته سو.[3]

که موږ په غور وگورو د پښتو ناست او ناستل چه وروسته یوه سابقه (کښې) عیناً د هغه (نی)  په معنا په سر کي ور زیاته شوې ده، له دغو ریښو څخه دي ځکه چه عنصر ئې هغه (سد ـ ست) دي چه په سنسکریت کي هم و، او

ځيني جوړه سوه. دغسي هم مثلاً پزه یا پوزه په پښتو کي بیني ته وایو په پارسي پوز د انسان او حیوان د مخ راوتلي برخي ته وائي. پوزه هم په پارسي جگ او راوتلي ځاي ته وائي. په پهلوي کي هم پوز په دغو معناو مستعمل و[1] او (پوز- پوزه- پزه) په آریائي ژبو کي مستعمل او عنصري توري ئې (پ- ز) دي نو گویا په پښتو کي (پزه- پوزه) چه (بیني) ته ویل شوې دي معلول په علت دي او دا نوم په یوه مناسبت پر ایښو شوی دي چه د آریائي ژبو د لغاتو له ساختمانه سره سم دي.

دا قدیم اصول لکه په سنسکریت او اوستا کي چه پر لغاتو او کلماتو باندي جاري وه، تر اوسه هم په پښتو کي جاري دي، که عوام وغواړي چه د یوه نوي شي لپاره نوم وضع کړي طبعاً له دغو اصلي قواعدو څخه کار اخلي. مثلاً تحت البحري د نوي عصر له اختراعاتو څخه ده چه حسب الضروره ئې په پښتو کي اوبتل obtal بللې ده. دا نوم مرکب دي له اوبه او (تل=عمق) څخه دغسي هم ایروپلان یعني طیاره الوتکه بولي ځکه چه الوزي او د گرامافون ریکارد ټیکله بولي ځکه چه لکه ټیکله گردی دي.

ضمایم

# پښتو او میدي ژبه

لکه چه د کتاب په لومړیو برخو کي هم اشاره وسوه، میدیان یا مادیان آریائي خلق وه، چه د قبل المسیح د اومي پیړۍ په ابتداء کي دوي په غربي ایران کي یو سلطنت جوړ کړ، مؤرخین وائي چه دا خلق تر مسیح لس پیړۍ دمخه هلته تللي وه.[۱]

په دې کتاب کي موږ نور له دغه ماد قومه سره اړه نلرو، خو ځکه چه دوي هم قدیم آریائي اقوام دي او ژبه ئې هم پسله اوستا څخه قدیمه آریائي ژبه ګڼله کیږي، نو ښائي چه د ژبي د قدامت له پلوه د پښتو سره تطبیق کړه سي.

دارمستتر وائې چه اوستا هم لومړي په مادي ژبه نوشته سوې وه، او دغه مادي ژبه له پخوانۍ پاړسو Old Persian سره ډیره نزدي وه، او اوسنۍ کردي ژبه هم له مادي ژبي څخه مشتقه سوې ده.[۲] ځکه چه دغه میدي اقوام هم پسله عمومي هجرته چه آریائیانو له باختره کړي دي، د ایران په ورشوګانو کي سره خپاره سوي دي، نو ښائي چه د دوي په ژبه کي هم باختري آثار وي.

متأسفانه له میدي ژبي څخه موږ ته اوس څه ندي پاته چه هغه د پښتو سره مقابله کړو، فقط هیروډوت د مؤرخینو پلار، له دغي ژبي څخه یوه کلمه ضبط کړیده او هغه سپاکه spaca ده، چه سپۍ bitch معنی لري.[۳]

ګریرسون وائي: چه میدي ژبي د ایران په شرقي خوا کي ویلې کیدې ځکه نو د پامیر او د هندوکش د جنوب ژبي لکه غلچه، اورمړي، بلوڅي او پښتو ټوله په میدي ډله کي داخلوي، چه د ده په اصطلاح نن پرشک Non-Persic ژبي دي.

# پښتو او زړه فارسي (فرس قدیم)

د مورخینو په اصطلاح زړه پارسي یعني فرس قدیم Old Persian هغه ژبه ده، چه پخوا په خاص ایران "پارس" کي ویله کیده، او د مخامنشي دورې رسمي ژبه وه، د دوي نوشتې او دفاتر او ډېر لیکونه ټول په دغه ژبه دي، پاچهانو په دغه ژبه خبري هم کولې، مګر اوس د دغي ژبي آثار بیله ځینو لیکونو چه پر ډبرو پاته دي، بل څه نسته.[۱] له دغو لیکونو څخه د ژبو پوهانو فقط د زړې پارسي ٤٠٠ الفاظ موندلي دي، چه په میخي خط کښلي سوي دي.[۲]

زړه پارسي زند ژبي ته ډېره ورته وه، لکه زند ٢٤ توري لري، اما لږ څه تر زند ساده ده، په دغه ژبه چه ډېر لیکونه په ایران کي سته، د هخامنشي دورې د مؤسس، کوروش (٥٥٩-٥٢٦ ق،م) له عصره شروع کیږي، او په درو څلورو ژبو په میخي خط کښلي شوي دي، یعني یو مطلب هم په زړه پارسي هم په آسوري هم په عیلاي ژبه نوشته سوی دي.[۳]

که څه هم زړه پارسي له پښتونخوا څخه لیري په پارس کي پیدا سوې وه، او باید له پښتو سره ډېره نزدې نه وي، مګر بیا هم ځکه چه ریښې یې له اوستا سره نښتي دي، او د باختر له سرچینې څخه اوبه خور مومي نو به ضرور لغوي قرابت سره لري.

په لاندو کرښو کي زه د زړې پارسي، یو څو کلمات له پښتو سره مقابله کوم، کم چه له هغې ژبي څخه اوس پاته او ما ته معلوم دي، له دغي مقابلې څخه به ښائي د قدیمو ژبو روابط، د پښتو سره تاسي ته ښکاره سي:

ا ـ اورمزد: چه په اوستا کي اهوره مزدا دي، او د دې کلمې شرح دمخه لیکلې سوې ده، چه لومړي جزو یې د پښتو اور دي، د ایران د زړې پارسي په ډېر لیکو کي هم (اور مزد) ضبط سوې ده.[٤]

۵- دروکا: یعني دروغ چه په اوستا کي درواغه او په سنسکریت کي دروه او په پهلوي کي دروغ و[1] په اوسنۍ پښتو کي درواغ او دروه دواړه ژوندي دي.

٦- وسپا: یعني اسپ، چه په سنسکریت کي (اشوه) او په اوستا کي (اسپه) او په اوسنۍ پښتو کي (آس-اسپه) دي. چه شرح ئې دمخه هم تیره سوه.

۷- یوترا: یعني پسر. دا کلمه د استخر د داریوش په کتیبه کي د زوي په معنا راغلې ده.[2] چه په اوستا کي هم (یو تهره) او په سنسکریت کي (پتره) او په پهلوي کي پور=پوس=پوش وه.[3]



د پښتو (پوت) هم په دغه معنا دي، چه دمخه ئې ذکر وسو.

۸- پیسو pisu: یعني پیس، دا کلمه په پښتو کي هم تر اوسه (پیس) ده، چه په عربي دا مرض برص بولي او په اوستا کي (پئیسه) او په پهلوي کي (پسک) وه.[4]

۹- پمون pamon: یعني گرک، چه اوس په پښتو کي پم یعني گرگ او پمن گرگین سته.

۱۰- نامکا namka: یعني نام، دا کلمه په سنسکریت کي (نامن) او په اوستا کي (نامن) او په پهلوي او پارسي کي (نام) ده، په پښتو کي (نوم) بولي، په زړه پارسي کي (نامکا) وه، په هخامنشي کتیبو کي د یوې میاشتي نوم (انامکا) و، یعني بې نومه.[5]

۱۱- مرگا marga: یعني مرغ دا کلمه په سنسکریت کي مرگه (جاندار و چارپا) او په اوستا کي مرغه او په پهلوي کي مروک وه.[6] په زړه پارسي کي مرگازانا د یوې میاشتي نوم و، چه د ایران په زړو کتیبو کي ذکر راغلي دي. مرگا یعني مرغه او (زنا) یعني زوول. ځکه چه دا میاشت د مرغانو د زوکړي وخت و، نو په دغه نامه یاده سوې ده.[7] د پښتو مرغه (پرنده) او (زوول) دغو قدیمو کلمه ته نژدې دي.

۱۲- ویاخنا vyakhna: دا هم په زړه پارسي کي د یوې میاشتي نوم و، چه په اوسني پارسي ئې اسفند بولي،

دا کلمه په اوستا کي (ايسي) ده، چه (س) په (خ) اوښتي دي، او په سنسکريت (يخ) د بريښيدلو په معنا و، چه د يخي صفت دي، او د سنسکريت (ج) په اوستا کي په (س) اوښتي و.[1]

له دي لنډي مقايسې څخه چه فقط په يو څو لغتو کي وسوه، د پښتو نزديوالي له هغي زړې پارسي ژبي سره هم ښکاري، او دا څرگندوي، چه زړې پارسي هم باختري عناصر درلوده.

# د زړو ژبو او پښتو عروض Versification

په آریائي اقوامو کي زاړه کتب او آثار ټول نظم دي، لکه د کتاب په لومړيو برخو کي چه اشاره وسوه، ريگويدا او گاتها دواړه يو راز نظم دي، دا نظمونه په مخصوصو لحنو او وزمو ويل کيده، تر دې حده چه اسلامي مورخينو د زردشت کتاب اوستا زمزمه باله.[1] علاوه پر دغو کتابو د هند آريائيانو ډير نور منظومات هم درلوده، د دوي قصص او روايات لکه مهابهارتا او رامااينا او نور ټول منظوم وه، په دوي کي نظم دوني رواج درلود، چه اکثر علوم لکه طب، نجوم، رياضيات ئې منظوم کړي وه، او دا منظومات به ئې په يادوله، البيروني دا مطلب په ښه ډول تصريح کوي، حتي دي وايي چه ما د اقليدس او مجسطي او اسطراب ترجمه په سنسکريت کي دوي ته وکړه، دوي فوراً په اشلوک يعني يو راز نظم تبديل کړه.[2]

ځکه چه نظم په دوي کي ډير رواج درلود، او اکثر ديني او علمي او ادبي متون ئې منظوم وه، نو هم له دې جهته د نظم کولو علم (چهند) لکه دمخه چه مو ويلي دي، په ويدي علومو کي ډير اهميت درلود، او پر هر عالم لازمه وه، چه دا علم زده کړي.

د آريائي اقوامو قديم منظومات، په سنسکريت او اوستا او پهلوي ژبو کي د سلايبل (هجا) په حساب وه لکه اوس چه په اروپائي ژبو کي هم دغه نظمي اصول جاري دي، د منظوماتو د ټوټو د سلايبل (گڼ) تناسب او په شمير کي مطابقت ضروري و، قافيه ډيره لازمه نه وه.[3]

که څه هم د سنسکريت علم العروض (چهند) ډير ارت علم دي، او هم ډير کتابونه پکښي کښل سوي دي، او علامهٔ البيروني پخپل کتاب الهند کي يو باب د دغه علم د تفصيل لپاره مخصوص کړي دي، مگر اساسي قاعده

نو ګویا ټول پښتو اشعار، کم چه په دیوانو کي مضبوط دي یا شفاهي اشعار چه خلق ئې لولي، او سینه په سینه نقل کیږي، د سلاییل او ګړ پر حساب برابریږي، مثلاً د پښتو د ملي شعر یو مهم وزن لنډۍ ده، چه د دغه لومړۍ مسرۍ به ضرور (۹) ګړه، او دوهمه مسرۍ به ئې (۱۳) وي،چه د یوې لنډۍ مجموع ګړونه (۹+۱۳)=۲۲ کیږي.

د پښتو علم العروض (چهند) هم پر دې اساس بنا کیږي، او دا دګړ حساب یو خاص آریائي عروضي اساس دي چه په ټولو هندو اروپائي ژبو کي له قدیمه پاته دي. د پښتو او سنسکریت او اوستا زاړه منظومات ټول تر دې علمي اساس لاندي دي، او په ټولو اروپائي ژبو کي دا قانون په نظم کي جاري دي.

اما د خلیل بن احمد عروض یو سامي اساس دي، چه پارسي ژبه ئې هم تر خپل اثر لاندي کړې ده، او دا کار هم تر اسلام وروسته درې څلور سوه کاله پس سوي دي، البته د پارسي زاړه آثار به هم لکه پهلوي پر قدیم آریائي قانون برابر وه.

# پاي

تر دې ځایه ما د لوي ښښتن په مدد د پښتو ادب لومړی ټوک وکیښ، او په دې برخه کي مي هغه ابحاث سره یو ځاي کړه، کم چه د پښتو پر اصالت او قدامت دلالت کوي.

ځکه چه دا کتاب پخپل مبحث کي اول کتاب دي، او دمخه چا په دې کارګوتي ندي پوري کړي، او هم ماخذ او مراجع نسته، نو که زه په ځینو خبرو کي تیر وتي یم، ښائي چه پوهان به ما وبخښي.

کابل، جوی شیر، د سهار ۹ بجې ۲۳ د جوزا ۱۳۲۴

# استدراک

**بد=بت**

د کتاب په ٧٦ مخ کي د (بد=بت) بحث سته، او هلته د البيروني له کتاب الهند څخه د (بدهـ) اصل بيان شوي دي، وروسته چه ما آثار الباقيه وکوت البيروني وايي چه د ماني په (شاپورگان) کتاب کي هم د هندوستان مشهور داعي (بودا) د (بد) په ډول راغلي دي. د آثار الباقيه فاضل مترجم (صيرفی) په حاشيه کي ليکي، چه (بد) په عربي کي هم د (بت) په معنا و لکه ابوالعلاء معری چه د دنيا غندنه کوي او وائي:

و القلب من اهوائه عابد ما يعبد الكافر من بده

(د آثار الباقيه ترجمه، ص ٢٢٩)

**تومان**

په ١٣١ مخ کي چه د زردشت نوم سپينتمان تحليل شوي دي د نامه آخره ټوټه (تومان) دي چه په پښتو ئې تومنه بولي. دا نوم په صريح ډول البيروني (سفيد تومان) ليکلي دي چه د (سپين تومان) پارسي شکل دي.
د آثار الباقيه فاضل مترجم چه د دغه کتاب ځيني برخي، له قديمو نسخو څخه لاس ته راوړي دي، هلته د زردشت په مبحث کي دا کلمه راغلې ده (د آثار الباقيه د ترجمې آخر).

# د دې کتاب ماخذ

دکتاب په لیکلوکي ما له ځینوکتابو څخه اسفاده کړیده، او هر مقصد چه مي له یوه کتابه را اخستي دي، د مخو په لاندي برخه که مي هغه کتاب او مخ او ټوک ښولی دي، دلته فقط د هغوکتابو نومونه بیل راوړم.  (حبیبي)


۱- قاموس فیروز آبادی
۲- اقرب الموارد
۳- معیار اللغه
٤- تعریفات سید شریف جرجانی
٥- دایرة المعارف بستانی
٦- علم الادب
۷- جواهر الدب هاشمی
۸- ارشاد القاصد سخاوی
۹- روح تنقید، محی الدین قادري
۱۰- ادبیات انکلیسی بروک
۱۱- د ادبیاتو زدکړه جان مورلی
۱۲- عین الادب و السیاسه د ابن هذبل
۱۳- مقدۀ ابن خلدون
۱٤- طبقات الادباء
۱٥- محجم الادباء - یاقوت
۱٦- کشف الظنون - حاجی خلیفه
۱۷- کشاف اصطلاحات فنون - تهانوی
۱۸- تاریخ ادبیات ایران - جلال همائی
۱۹- نفایس الفنون
۲۰- انسکلوپیډیا بریتانیکا
۲۱- انسکلوپیډیا - امریکانا
۳٥- هند ریګویدي - داس
۳٦- هند و اروپائی - دولا واله دوپوسن
۳۷- تاریخ افغانستان - کهزاد
۳۸- هند قدیم - پاینکار
۳۹- اوستا - دارمستتر
٤۰- میخي خطوط - ویسباخ
٤۱- مردمان قدیم
٤۲- مقدمۀ تاریخ هند قدیم - اکبر شاه
٤۳- ریګویدا ـ ګریفت
٤٤- اتهروا ویدا - ګریفت
٤٥- ګاتها - پور داؤد
٤٦- قاموس پښتو - راورتي
٤۷- قاموس پښتو - پښتو مرکه (قلمي)
٤۸- تاریخ مرصع - افضل خان خټک
٤۹- تاریخ  ادبیات ایران - براون
٥۰- تاریخ شرق اقصی
٥۱- هند مدنیت بخش
٥۲- ریګویدک کلچر
٥۳- حیات افغاني - حیات خان
٥٤- آریانا - کهزاد
٥٥- مها بهارت اردو - افق

٦٩- گرامر پښتو - بیلو

٧٠- ترانهاي ملي افغان - دارمستتر

٧١- گرامر پښتو - ترومپ

٧٢- سلسلهٔ لسانیات اکادیمي لنین گراد، ج ٤

٧٣- گرامر پښتو - لوریمر

٧٤- راپورت السنهٔ هند ـ گریرسن، ج ١٠

٧٥- علم ادیان ـ فرلانگ

٧٦- معلومات هندي ـ ویبر

٧٧- مذهب ویدي - اولډنبرگ

٧٨- مذهب ویدي - بلومفیلډ

٧٩- تاريخ ابو الفداء

٨٠- حدود العالم

٨١- گزیټر افغانستان

٨٢- نسبت نامهٔ افاغنه - عبدالسلام خان

٨٣- فرهنگ اوستا

٨٤- خورده اوستا

٨٥- قاموس هندي و انگلیسي ـ ډنکن فوربس

٨٦- السنه پامیر

٨٧- طبقات ناصری (قلمی) جوزجانی

٨٨- فرهنگ نظام - محمد علی

٨٩- ویدا در ممالک شمال - لاکمینا

٩٠- تاريخ ادبیات سنسکریت - مکډونل

٩١- جغرافیاي شمال غرب هند

٩٢- آرین ساختن هند - دوت

١٠٦- آداب الحرب - فخر مدبر

١٠٧- آثار الباقیه - البیرونی

١٠٨- تفسیر الجواهر - طنطاوی جوهری

١٠٩- تاريخ ادبیات ایران ـ شفق

١١٠- گرامر اوستا - جکسون

١١١- جورنال ایشیاتک سوسایتی ١٨٧٢

١١٢- مروج الذهب مسعودی

١١٣- دبستان مذاهب - فاني

١١٤- لغت فرس - اسدي

١١٥- تاريخ عمومي عالم ـ رضا اخوی

١١٦- فرهنگ ناصری

١١٧- مجلهٔ آریانا - کابل

١١٨- تعلقات هند و عرب - سید سلیمان ندوی

١١٩- فتوح البلدان - بلاذری

١٢٠- چچ نامه، ترجمهٔ الیت

١٢١- کتاب البلدان ـ ابن فقیه همدانی

١٢٢- آثار البلاد ـ قزوینی

١٢٣- مزارات بلخ (قلمی) محمد صالح ورسجی

١٢٤- معلومات زرتشتي - جیکسون

١٢٥- گرشاسپ نامه

١٢٦- شهنامه - فردوسی

١٢٧- قانون مسعودی - البیرونی

١٢٨- فرهنگ نوبهار

١٢٩- فرهنگ انندراج




ځاي ښخ دی[1] او سلیمان ماکو د ده یو شعر داسي را نقل کړي دي:

په هغه میدان کي چي شیخ ملکیار د سلطان معزالدین د لښکرو سره یو ځای جنګیدی او نژدې و چي د سلطان لښکر ماته وکړي؛ نو دې توریالي ادیب او عارف یوه د ننګ او جنګ سندره وهیله او لښکریان یې همت او شجاعت او توریالیتوب ته تشویق کړل، څو په پای کي بریالي شو، او د جنګ پر ډګر یې سوبه په برخه شوه، سلیمان لیکي: په جوبله کي ملکیار دا پاړکي[2] وهیل، چي غازیان وپاریدل[3] او په څیر د زمرو ور توي شول:

| | | |
|---|---|---|
| څښتن مو مل دی | اوس مو یرغل دی | هیواد د بل دی |
| غازیانو ګورئ | څڅښتن مو مل دی | |
| توري تیرې کړئ | دښن مو پرې کړئ | منګولي سرې کړئ |
| څله به تښتو | څښتن مو مل دی | |
| که ټینګ کړو زړونه | پر بري یونه | چي زمري یونه |
| اسلام را څخه دی | څښتن مو مل دی | |
| غازیانو راشئ | ټول شاو خوا شئ | د شهاب په ملا[4] شئ |
| دښن مو غوڅ کئ | څښتن مو مل دئ[5] | |

د ملکیار دا شعر چي د قدیمو اقوامو د حماسیاتو او رجز رنګ لري، له هغو سندرو څخه دی، چي پخوانو پښتنو به د جګړې پر میدان ویلې او مقصد یې دا و چي د زلمو احساسات تاوده کړي او پر جنګ یې ښه وپاروي. د دې شعر عروضي کیف او الفاظ او کلمات سوچه دي او لکه نورو ګړني (عوامي) اشعار یو تکراریدونکي کسر (غبرګ) هم لري، چي د هر بند په پاي کي ویل کیږي او د پښتو د مخصوصو اشعارو یو ښه خاصیت دی. شاعر په حقیقت کي یو مبلغ هم دی او په هر ځاي او هر موقع کي د خپلو ویناوو د اغیزمنولو لپاره د بیان طرز او اسلوب داسي ټاکي چي د ده وینا پر اوریدونکیو باندي اغیزه وکړي او د شعر مقصد حاصل شي.

په دې پاړکي کي هم ملکیار د غوري سلطان د جنګیالیو د پارولو لپاره دوی ته داسي خطابونه کړي دي چي باید په اوریدلو یې متاثر شوی وی او په دوی کي یو ملي او دیني هیجان پیدا شوی وی. دا پاړکي بې له نومو نور ټول سوچه پښتو دی او په اخر پاړکي کي ملا د ملګرئ او همراهئ په معنی هغه زړه کلمه ده چي د اسعد سوری په قصیده کي هم

مقامه هم کار واخلي او د شعر په وسیله د لښکرو روح تقویه کړي؛ نو ملکیار په پخوانو شاعرانو کي هم عارف و، هم شاعر و هم جنګیالی او دا درې سره خواوي يې په شعر کي شته.

## ۱۲. تایمني

### د ۵۸۰هـ حدود

د تایمني په نامه موږ د پښتنو یو پخواني ادیب او شاعر پیژنو مګر دا نه ده ښکاره چي د دې شاعر نوم تایمني و که د تایمني قوم ته منسوب و چي دا قبیله په غور کي اوسي.

د غوري شاهانو په عصر کي لکه نور مشهور پښتانه شعراء چي تیر شوی دی یو له هغه څخه تایمني دی، چي د ده ځني اشعار تر اوسه هم د زمینداور په غرو او رغو کي د خلکو په یاد دي، د غوري سلطان غیاث الدین معاصر و او ځکه چي د ده یو شعر په زمینداور اړه لري او هم په زمینداور کي اوسید ځکه چي د دغه سلطان پاچاهي د ۵۸۰هـ په حدودو کي وه؛ نو د تایمني ژوند هم په دغه عصر کي و، تر دې زیات نو د ده احوال نه لرو.

په ۱۳۱۰ش کال چي زه د هلمند په کلیو او لتو کي ګرځیدم په یوه کلي کي د شپې د زلمو بنډار و او د نشاط او مسرت بزم تود و هلته به ځينو په خواږه ږغ نارې کولې او ځينو به نڅل او بعضو به بدلي او سندري ویلې د دې بنډار په یوه خوا کي یو سپین ږیری ناست و که څه هم زمانې نتلي و او ویښتان يې تک سپین و؛ خو خوش ارواح سړی و او زړه يې ځوان و.

دې سپین ږیري د زمینداور په غرو کي د زلمي توب ښې شپې ورځې تیري کړي وې او د هلمند پر غاړو يې د میني په دنیا کي خپله ځواني خاوري کړې وه، د سترګو دید يې لږ شوی و؛ خو زړه يې بینا و، غوږونه يې درانه وه؛ خو سد يې پر ځاي و، زلمو ده ته په درنه سترګه کتل او ده هم پخپلو خوږو سندرو، بزمونه تودول، د خپل زلمي توب کیسې به يې کولې او د هلمند د غاړو او د لور د ودانۍ او مدنیت زړې افسانې چي ده ته له تیرو نیکونو څخه رسیدلي وې بیانولې به يې. دې سپین ږیري پخپلو سندرو کي د تایمني په نامه دا شعر په ملي وزم او خوږه لهجه ولوست، چي د پښتو یو زړه ادبي ټوټه ده:

نن زه ږغیږم په صفت د سلطان　　　چي دی بادار غازي ملک د جهان

هند يې روښانه په اسلام کې نا | له ځاني خوښ خير الانام کې نا
چې يې په غور کې نيلي زين کې نا | پر کافرانو يې ناورين کې نا
تل دې برى وي د غازي پر ميدان | زه تايمني ستاينه کړم د سلطان[1]

د تايمني له اشعارو څخه فقط دغوني موږ ته پاتی دی او په دې کې دی زمينداور ستايي او د دې ځای تاريخي وداني او مدنيت بيانوي، دی په زمينداور کې د ارم باغ ستاينه کوي او وايي چې د فيروزکوه په ډول ودان دی او د تاريخ له پلټني ښکاري، چې دغه ارم په داور کې يو باغ و د غوري عصر يو مؤرخ منهاج سراج جوزجاني هم د دې باغ ارم ياد داسې کوي:

''ثقات چنين روايت کرده اند که سلطان غياث الدين در اول جواني معاشر عظيم بود و شکار دوست و از حضرت فيروزکوه که دارالملک او بود تا بشهر زمين داور که دارالملک زمستاني بوده هيچ افريده را مجال نبودي که شکار کردي... در زمينداور باغی ساخته بود آنرا باغ ارم نام نهاد و الحق در ميان دنيا مثل نزاهت و طراوت آن باغ هيچ پادشاهي را نبود و طول او بقدر دو ميدان وار زيادت بود...''[2]

منهاج سراح د غوري عصر يو مشهور سړی دی چې د غوري شاهانو په دربار کې اوسيد، د باميان فيروزکوه، هرات، زمين داور مدنيتونه يې پخپلو سترگو ليدلی دی، د تايمني پښتون شاعر دغه بدله هم د دغه مؤرخ د بيان تاييد ښه کوي او دا دوه معاصر ادبأ د غوريانو د ثقافت نمايندگان دي. د تايمني دغه شعر روان او ساده دی او ضمناً حماسي خوا هم لري او لکه د پښتو افواهي اشعار په وزم هم ويل کيږي، که څه هم ظاهراً د عروضي اشعارو په تقليد د قافيي تر اصولو لاندي دی؛ مگر د پښتو د پخوانيو او اوسنيو ازادو سندرو رنگ لري او د اکثرو بيتو په پای کې د ترنم (نا) راغلي دی او دا خاصيت د ملي اشعارو دی چې په ترنم ويل کيږي.

داسسي ښکاري چې تايمني په شعر کې د پخوانو او خاصو وطني اسلوبو تابع و، مگر بيا هم د ماحول اثر پرې شوی او ښايي د پارسي ادب اغيزې پرې لويدلې وي، چې د ده له دغه يوه شعره ښه ښکاري.

## ۱۳. قطب الدين بختيار

۶۰۰هـ

بغوث العالم شیخ بهاءالدین زکریا ملاقات نمودند...''[1]

په دې ډول نعمت الله د پښتنو مورخ، قطب الدین بختیار د خپل کتاب په ډېرو ځایو کې ''اقطب افغان'' بولي او د ده د نورو هم قومانو مشاهیرو نومونه هم راوړي. لکه خواجه یحیي بختیار، شیخ شهاب بختیار، شاه ابو بکر بختیار او نور.. دا خو ښکاره ده، چې بختیار د پښتنو یو خورا مشهور او ستانه قوم دی، چې تر اوسه هم د سلیمان غره په شاوخوا کې پوندګي او سوداګري کوي ځکه چې پردي مؤرخان د پښتنو په دغه قوم نه وه خبر، نو یې قطب الدین پښتون نه دی لیکلی، تش د ده سره بختیار لیکي، فرشته وایي، چې دی په اوش کي زوکړی دی چې د ماوراء النهر له ښارو څخه و[2] ابوالفضل علامي هم دی د فرغانې د اوش بولي.[3]

اوش یا اوچ خو دوه زاړه ښارونه وه، چې د سیحون پر هغه بله غاړه ودان وه.[4] ابن خرداذبه وایي: دا یو لوی کلی و چې له قبا څخه اوه فرسخه لري و او اوزګند ته لس فرسخه پروت وه.[5] یاقوت هم دا دوه کلي بیل بیل یادوي اوش له فرغانې څخه او اوچ د سیحون پر غاړه ګڼي[6] نو که موږ د نورو مؤرخانو دغه قول چې قطب الدین په اوش کي اوسید نو ځکه چې د ده پښتونواله پښتنو مؤرخانو تصدیق کړې ده؛ نو دا ویلای شو، چې د ده نیکه یا پلار به هغې خوا ته تللي او قطب الدین به هلته زوکړی وي. دلته دا خبره هم د غور وړ ده، چې زموږ پښتون مؤرخ سلیمان ماکو خپله تذکره کي د دې قطب الدین ذکر داسي کړی دی:

''نقل کاوه شي چې: بختیاری ستر ستانه و، له ده څرګنده شوي دي هغه کرامات چې موږ وکښل او وهیل، موسی چې ستر پلار و د قطب، تللي و له بختیارانو څخه او میشت و پر ایواد چې سیند باله شي.''[7] دا روایت خو د قطب الدین د نیکه تګ له خپله وطنه ثابتوي؛ مګر د ماوراء النهر پر ځای سند ښیي که موږ دقت وکړو، په سند کي هم په دغو وختو یو ښار ودان و چې اوچ یا اوچه بلل کیده، مؤرخان یې د سلطان معزالدین غوري په فتوحاتو کي د ملتان سره یو ځای راوړي[8] او دا ښکاري چې اوچ د سند یو مشهور ښار و؛ نو که د قطب الدین پلار او نیکه په دغه ښار کي اوسیدلي وي؛ ځکه چې د قطب او د ده د پلار نور عرفاني معاصران هم په ملتان کي و؛ نو به د سلیمان ماکو قول اصح وي، په هر صورت قطب الدین خو پښتون و، چې نیکه یې له خپله قومه بختیارانو څخه تللي یا د سند په اوچ یا د ماوراء النهر په اوش کي اوسید او روهسته لکه دمخه چې وهیل شوه په هند کي شهرت موندلي دی.

قطب الدین د مخزن افغاني او آیین اکبري او مخبر الاصلین په قول د لومړئ خور په ١٤ په هجري کال ٦٣٣ او

**د قطب الدین اشعار:**

د قطب الدین علمي او عرفاني شهرت خو له تیرو لیکنو څخه تاسي ته ښکاره شو، چي د نوموړی بختیاري پښتون په عرفاني دنیا کي ځوني لوړ مقام لری او اکثر د اولیاوه تذکره نگاران د ده احوال ذکر کوي؛ مگر دا عارف د پښتو یو خورا ښه شاعر هم دی، چي سلیمان ماکو یې پخپله تذکره کي د مناقبو تر شرحي وروسته یوه عشقي سندره هسي را نقل کوي او ځکه چي سلیمان د ده معاصر دی، نو یې قول د منلو وړ هم دی.

"بختیار په پښتو سندي کړینه، او ښې تویوینه، خدای ته ناري کړي، غلبلې کړي، پاړکي لرینه، چي یو دا دي:

| | |
|---|---|
| ویر مي زړه سوری کړ | راته وگوره ملوکي! |
| په بیلتون کي دي وباسم: | له خوږمنه زړگي کوکي[1] |

راته وگوره ملوکي! راته وگوره ملوکي!

| | |
|---|---|
| د بیلتون اورونه بل دي | هر گړی مي زړگی سوځي |
| لینونی یمه د میني | سوځم زه لکه پیلوځي[2] |

راته وگوره ملوکي! راته وگوره ملوکي![3]

| | |
|---|---|
| غوړولی دی وربل[4] دی | اور زما په زړگي بل دی |
| زه بختیار خاوري ایرې سوم | په اور سوی مي گوگل دی |

راته وگوره ملوکي! راته وگوره ملوکي![5]

په دې اشعارو کي د پښتو شعر زوړ اثر اوس لا شته، یوه پردۍ کلمه پرې گډه نه ده او د اداء ډول یې هم ساده، اما ډیر بلیغ دی. د میني واردات او د مین د زړه احساسات یې ښه پکي څرگند کړی دی، دا شعر لکه اوسني عامیانه اشعار تکرار کیدونکي عبرگ کسر هم لري.

داسي ښکاري، چي قطب افغان د میني په دنیا کي تاوده جذبات لرل او سلیمان ماکو، چي د ده معاصر دی دغه عشقي احساسات په داسي ډول بیانوي:

"تل ژاري، او نارې، غلبلې کړی او د عشق سندري لولي" له دغو عشقي نارو او سندرو څخه یوه لوړه سندره اوس موږ ته پاتي ده، چي د شاعر د زړه درد او سوزناکه جذبات ښکاره کوي.

چي په لومړۍ مسرۍ کي (را) او بیا د مقامش (ش) بیخونده دی او دا دواړه په یوه جمله کي په دغه ډول سره یو ځاي کول د بلاغت له اصولو سره نه ښایي، که دا لاندي ابیات هم ولولي؛ دغه خبره به ښه څرګنده شي او هم به مو د ده د پارسي کلام نمونه لوستلې وی:

| | |
|---|---|
| اي خاک درت بفرق سرتاج | محتاج تو هم غني و محتاج |
| هستي وجود عاشقان را | کردی به کرشمهٔ تو تاراج |
| از دولت عشق تو دل من | چون بحر عمیق گشته مواج |
| از مملکت وجود عشقت | هر چیز که بود کرد اخراج |
| خامی که زند دم از انالحق | بر دار ز نیش همچو حلاج |
| محتاج تو قطب دین نه تنهاست | باشد بتو کاینات محتاج |

که د دغه پارسي دیوان انتساب قطب افغان ته ثابت شي؛ نو به موږ وهایو چي دا په رښتیا د یوه غیر پارسي زبان سړی کلام دی، چي پارسي یې خپله ژبه نه ده او یو پښتون به هم داسي ماته ګوډه پارسي وایي، که څه لوړه غزل د ویونکي د فکر پوخوالي هم ښیي؛ خو ژبه یې هغومري پخه او سوچه او خوږه نه ده.

## اوهم څپرکي
## نثر او لیکوال
## تر ۶۰۰هـ پوري

لکه چي تاسو د دې کتاب په لومړي ټوک کي ولوستل د آریایي ژبو او اقوامو پخواني کتب او ادبي آثار ټول منظوم دی، ویدا، اوستا او سنسکریت زاړه کتابونه لکه مهابهارته او راماین او نور ټول یو راز ازاد نظم دي، چي ښایي د تغني او ترنم په ډول به ږغول کیده، دا خبره چي نظم تر نثر په ادبي آثارو کي دمخه دی یوازي په ارین ژبو پوري لا هم اړه نه

تباه شوي وي؛ نو گويا د اسلامي دورې لومړۍ پنځه پیړۍ هسي وختونه دي چي موږ د پښتو کوم منثور کتاب نه شو پکي موندلای او فقط له يوه کتابه چي په پښتو کښل شوي و لږ معلومات لرو.

### د سالو وږمه
### د ۲۹۰هـ حدود

د دې کتاب په درهم څپرکي کي تاسي د ابو محمد هاشم د زيد سرواني د زوی اشعار ولوستل او د ده شرح حال هم هورې وليکل شو، دا سړی د پښتو پخواني شاعر او هم عالم دی چي مخصوصاً يې په عربي ادب کي لوی لاس درلود او د عربو د مشهور استاد ابن خلاد شاگرد و او په کلو کلو په عربي ممالکو کي اوسيدلي و.

هاشم په ۲۹٤هـ له عراقه راغي او په بست کي يې يو کتاب د عربو د اشعارو د بلاغت او فصاحت په بيان کي وکيښ چه نوم يې د سالو وږمه و يعني د ريگستان نسيم[1] چي په پښتو سال ريگ ته وايي او وږمه د نسيم په معنی ده. زموږ د اوسنيو معلوماتو له قراره دا د پښتو ډېر پخواني کتاب دی چي تر اوسه موږ ته معلوم دی او د پټې خزانې مؤلف يې د لرغوني پښتانه په حواله نوم اخلي او د هاشم سرواني له مؤلفاتو څخه يې گڼي.

نور نو موږ معلومات نه لرو چي د دې کتاب نثر څنگه و او ثوني و خو فقط د پټې خزانې د مؤلف له دغي مجملې نوشتې څخه داسي نتيجه اخيستلای شو، چي په پښتو ژبه قدماوه کتابونه ليکل او دا رسم موجود و.

## اتم څپرکی
## د قدماوه دورې ته عمومي کتنه يا
## د لومړۍ برخي لنډون

تاسو په دغه لومړۍ برخه کي ولوستل چي د پښتو ژبي لومړي ادبي اثر او شعر د هجرت د دوهمي پيړۍ په ابتدايي کلو اړه لري او د دې ژبي خورا پخواني شاعر چي تر اوسه موږ ته معلوم دی د سوريانو د کورنۍ پهلوان امير کروړ د امير

دا اشعار چي د ۵۰۰هـ کلو د مختلفو ادبي تمايلاتو او جذباتو نمايندګي کوی اکثر د پښتو ژبي د مخصوصو عروضو او اوازنو په ډول چي سندري او پاړکي يې بولي، ويل شوی دی؛ مګر تر ٤۰۰هـ را وروسته ځيني داسي اشعار هم شته چي د عربي او پارسي عروضو او قافيو ته نژدې دی، لکه ځيني قصايد چي د غور په دربارکي ويل شوی دی او په پښتو يې بولله، جمع بوللي بولي.

عموماً د قدماوه په دوره کي د شعر ژبه خالصه پښتو وه او اکثر زاړه اشعار د نورو ژبو کلمات هيڅ نه لري او که په ځينو کي څه پردي کلمات وي، هغه هم زښت لږ دی. هغه اشعار چي په غرو او رغو کي ويل شوی دی، د نورو ژبو له اثره خالي دی؛ مکر ځيني اشعار چي تر ٤۰۰هـ را وروسته په ښارو او مدني ځايو او دربارو کي ويل شوی دی، لږ لږ د نورو ژبو د کلماتو ګډون پکي ښکاري او دا هغه د محيط کلک اثر دی چي تل پر ادب باندي لويږي.

عموماً ټول د لومړۍ دورې منقول اشعار د پښتنو د روحياتو او د دوی د محيط د اثر او د غرو او رغو د مناظرو او د دوی د اجتماعي شعور او ملي جذباتو نمايندګي کوی او هغه اخلاق او افکار او احساسات او مناظر تصويروی، چي د پښتنو په محيط کي موجود وه.

په دغو اشعاروکي د پښتو ډير داسي کلمات او لغات هم شته چي اوس ژوندي نه دی او په اوسني پښتو کي نه استعماليږي، دا لغات اسمأ او صفات هم دی او ځيني مصادر يا افعال هم شته چي اوس يې څوک نه وايي.

د قدماوه د دورې اشعار اکثر د پښتو ژبي د فصاحت او سلاست له پلوه خورا سليس او روان دی، تعقيدات نه لري، ابهام او تکلف نه پکي ليدل کيږي، پيچلي او نغښتلي عبارات نه لري، د اداء طرز او اسلوب يې نهايت ساده او روان او د سهل وړ دی.

د قدماوه د شعر يوه مهمه ښيګړه دا ده چي د شعر مضمون يې سره نښتي او پيودلي او مسلسل دی، تر دې دورې وروسته چي نور شاعران په پردو اشعارو روږد شول، دغه خاصيت يې بايلود. د پارسي شعر د خراسان پر سبک چي د سامانيانو او غزنويانو او سلجوقيانو په دوره کي کوم شعرونه ويل شوی دی هم دغه ښيګړه لری؛ مګر وروسته دغه د شعر د مضمون تسلسل له منځه وهت.

د پخوانو شاعرانو په تصوير او تخيل کي عموماً د محيط اثر دوني ټينګ دی، چي اکثر تشبيهات او استعاري يې طبيعي او محيطي دی، د بڼ تازګي او د اوبو شورهار د پسرلي ښکلا او د غرو او رغو زيبا ننداري د پيغلو اتڼونه د زرکو

د دوی لاس بر و، دوی په هند کي هم ډېر فتوحات وکړل او د غور شاهنشاهي یې له خراسان او آمو څخه د ګنګا تر څنډو پوري ورسوله.[1] غوریانو د پښتو ادب ته توجه کوله او د دوی په دربار او مملکت کي مشهور شعراء تیر شوی دی، خو د سپېږمي پیړۍ په اواخرو کي دغه کورنۍ ضعیفه شوه او پس له ۶۰۰هـ وه چي د مغولو د تاړاک لومړۍ څپې پر بلخ او غور او خراسان راغلې د ۶۱۸هـ حدود وه چي د مغولو څخه د چنګیز خان وحشي لښکر تر آمو را واوښتل، په دغو وختو کي د پښتونخوا شمالي خواوي لکه تخارستان، بلخ، بامیان، غرستان (غرجستان) خورا معمور وه، مشهور ښارونه یې لرل. بادغیس، مرو، هرات، غور داسي ښکلي او ودان ښارونه درلودل چي په هغو وختو کي د منځنۍ آسیا د تهذیب او علم مرکزونه وه، خلک په ډېره هوسایۍ پکي اوسیدل، علما، شعرا، ادیبان او پوهنوال ډېر وه؛ مګر د چنګیز خان وحشي لښکر او د ده د زامنو مدهشه قواء پر دې ودانو ښارو او ښکلیو مدنیتونو هسي را توی شول چي له لویو ښارو څخه یې یوه لوټه روغه نه پرېښوه او ښکلي ښارونه یې وران کړل، کتب خانې یې وسوې، ځمکي یې په وینو ولړلې او اکثر خلک یې مړه کړل، پاته غرونو ته وختل.

پښتانه په دغو وختو کي ډېر د شرقي پښتونخوا په غرو کي وه، د سلیمان د غره په شاوخوا او د کابل په جنوبي خوا او ننګرهار کي اوسیدل، خپله ژبه او خپل تهذیب یې د مغولو له تاړاکه خوندي کړي و او خپل استقلال یې ساتلي و؛ خو د پښتونخوا سیمي مغولو نیولي وې، په دغو وختو کي پښتو ادیبان لرل او خپله ژبه یې روزله، لکه د مغولو چور چي د پارسي ژبي پر ادب اغیزه وکړه او د ادیباتو افکار او د بیان طرز یې ور واړاوه، دغسي هم دې خونړۍ واقعې پر پښتو ادب خپله اغیزه وکړه چي زه به یې د دې کتاب په یوه بیل څپرکي او دریم ټوک کي بیان وکړم. د مغولو سلطه او اقتدار څلور پنځه پیړۍ اوږد شو، د چنګیز خان د کورنۍ مدهش تاړاکونه لا نه وه ساړه شوي، چي له دې خاندانه یو بل سفاک سړی د ۷۷۱هـ په حدودو کي راوهت، دا ګوډ تیمور و، چي ده هم پر دې ځمکه خپل تاړاکونه شروع کړه او په کلو کلو یې دا خواوي سره وریږدول؛ دا اور لا نه و مړ شوی او هري خوا ته یې دودونه ښکاریدل، چي بیا یو بل خونکار او ډېر د لوی زړه خاوند هم له دغه ټبره را وهت او د ۹۱۰هـ په حدودو کي بیا پښتونخواه سره ونښتیځله او د ویني تویولو او تاړاک سلسله یې هسي جاري وساتله، دا سړی بابر و چي مخصوصاً یې د پښتنو سره دښمني وه او د دوی سرونه یې ور کوټل.

په دې ډول له هغه وخته چي د پښتنو غوریانو د عظمت جنډۍ تر ۶۰۰هـ وروسته کښته شوه، بیا نو دې قوم د

او د مغولو دوره په يوه ادبي دفاعي تبليغ امتياز مومي؛ ځکه چي د دې دورې ادبي مميزات او خصايص بيل بيل پر خپل ځاي راوړل کيږي؛ نو به تر دغي تاريخي لنډې کتنې وروسته په مقصد پيل وکړم.

## نهم څپرکي
## شعراء

### ۱٤. شيخ متي
### ٦٣٣-٦٨٨هـ

دا مشهور عارف او متقي شاعر د پښتنو غورياخيلو څخه دی، چي د ده لوی نيکه خرښبون هم د پښتو اديب او شاعر و او دمخه يې احوال او آثار تاسو ولوستل.

شيخ متي د عباس زوی و، چي عباس د عمر او عمر د خليل زوی و خليل د غوريا او غوريا د کمند بن خرښبون زوی و. دا مشهوره کورنۍ د خرښبون تر مرگ وروسته په ارغسان، پښين او پيښبور کي سره خپره شوه او شيخ متي دوه نور ورونه هم درلودل چي حسن او امران نوميدل د امران مزار تر اوسه د کوږک پر غره دی، چي هغه غر د ده په نامه د خواجه امير غر هم بلل کيږي او يوه خور يې بي بي خالا چي قبر يې تر اوسه هم په پښين کي مشهور دی او په کلات کي د ترنک پر غاړه د خالا کلی هم د دې په نامه تر اوسه باله شي، چي دا به په ژوند هلته اوسيده. شيخ متي په ٦٢٣هـ زيږيدلي او د ٦٥ کالو په عمر د ترنک پر غاړه په ٦٨٨هجري کال وفات شوي دی، د ده مزار تر اوسه هم د کندهار شمال شرقي خوا ته تقريباً ۵۰ ميله ليري پر يوه غونډۍ واقع دی، چي کلات يې بولي او دی په کلات بابا مشهور دی، ده خپل ژوند هم د ترنک پر غاړو او د غونډان په غره او د کلات په حدودو کي تير کړی دی.[۱]

د شيخ متي کورنۍ په خليلو غورياخيلو کي خورا مهشوره ده، دوی د پيښبور له رغو څخه بيرته د کندهار خواوه او د ترنک غاړو ته ولاړل، په علم او عرغان معروف وه او د پښتنو مؤرخانو يې ذکر ډير راوړی دی، نعمت الله په مخزن کي (ص ۳۰۲ قلمي) او اخوند درويزه پخپله تذکره کي (ص ۸۷) او حيات افغاني (ص ۱۵۹) او نور مؤرخان د دې کورنۍ

## د ده اخلاقي او عرفاني شهرت:

شيخ متي په پښتنو کي لوړ اخلاقي او عرفاني شهرت لري او لکه ځيني خورا لوړ مشاهير دی هم د بابا په لقب يادېږي او دا لقب پښتانه هر چا ته نه ورکوي، فقط هغه کسان په دې نامه بلل کيږي، چي په دوی کي د علم يا عرفان يا بل لوړ خدمت له رويه ومنل شي او گرده خلک يې په بابايي قبول کړي. نعمت الله هروي پخپل مخزن افغاني کي د سړبنو په اولياء او عرفاني مشاهيرو کي دی داسي ستايي:

"آن طالب حقايق و کاشف معاني زبدۀ ابرار، خلاصۀ احرار، شيخ متي خليل، صاحب عبادت و رياضت بود، ايشانرا سر حلقۀ دوازده سړبن ميگويند و افغانان بسيار ارادت مياوردند و مريد ميشدند، چنانچه غلغلۀ کرامت ايشان در تمام منتشر شد..."[1] د پټې خزانې مؤلف وايي، چي: "شيخ متي لوي زاهد او عابد او پر خداي مين سړی و، عالم او د دين مرشد و او روحاني ژوند يې کاوه".[2]

د دې مشهور عارف په خصوص کي لا ډيري کيسې او روايات تر اوسه هم خلق نقل کوي، د ده کرامات بيانوي، په پټه خزانه کي له افضل الطرايق[3] څخه يو حکايت د ده د ښو اخلاقو په باب کي را نقل شوي دی، چي دلته يې لنډ راوړم:

"يوه ورځ شيخ متي پر لار تيريدي، چي هلته ډيري ډبري پرتې وې او لار يې بنده کړې وه، چي دغه ځاي يې وليد؛ نو څو شپې متواتر راغي او له هغي لاري څخه يې ډبري او کاڼي هيسته کړل، يوه دهقان د سپې خپله ځمکه اوبوله، ده ته يې وهيل: ته د خدای دوست يې او ټول خلک ستا احترام کوي؛ نو دوني زحمت ولي پر ځان تيروې او دغه لار پاکوې. شيخ متي هسي ځواب ورکړ، چي يوه گړۍ د خلکو خدمت تر هر څه ښه دی."[4]

## د ده اولاد او کورنۍ

شيخ پخپله کورنۍ کي علم او زهد او تقوی او ادب په ارث پريښول او تر ده وروسته له دغي کورنۍ څخه عارفان، شاعران او مؤلفان راوهتل، چي د هر يوه ذکر او تفصيل به پر خپل ځای راوړم؛ خو دلته به لنډه د دوی معرفي وکړم:

په پښتنو کي د شيخ متي کورنۍ په متي زي شهرت لري او د ده له زامنو څخه حسن او يوسف ډير مشهور دی، چي د يوسف زوی شيخ کټه يو لوی ولي او د پښتو مؤلف د ۷۵۰هـ په حدودو کي تير شوی او د لرغوني پښتانه کتاب يې ليکلي دی، بل مشهور عارف له دې خاندانه شيخ قدم بن محمد زاهد بن ميرداد بن سلطان دی، چي سلطان هم د شيخ

د ۱۲۳۰هـ په حدودو کې یې د کندهار په ناکودک کلي کې ژوند کاوه.[۱]

**د متي اشعار او آثار**

شیخ د پښتو یو خورا لوی صوفي او عرفاني شاعر دی، چې ده په عونډان (د کندهار د کلات یو غر) کې یو کتاب کښلي و، چې نوم یې و د خداي مینه او د پټې خزانې مؤلف وایي چې دا کتاب په کلات کې د ده پر مزار پروت و او زایرانوبه لوست، اکثر عرفاني اشعار او مناجاتونه وه او په داسې ډول ویل شوي وه، چې پر خلکو به یې ډیر اغیزه کړله او زړونه به یې ویلي کول[۲] د دې صوفي او مقتدر شاعر اشعار متاسفانه زموږ په لاس کې نشته؛ خو د پټې خزانې مؤلف یې دغه یوه عارفانه خوږه او مهیجه منظومه له خپله پلاره اوریدلې او داسې یې را نقل کړې ده:

پر لویو غرو هم په دښتو کې　　　په لوي سهار په نیمو شپو کې
په غاړه[۳] ږغ او په شپیلکو کې　　　یا د ویرژلیو[۴] په شپیلو کې

ټول ستا د یاد نارې سورې دي
دا ستا د مینې ننداري دي

جنډې[۵] زرغون که په بیدیا دی　　　د بربڼ[۶] خوا ته په خندا دی
ترنک چې خړ دی په ژړا دی　　　دا ټول اغیز[۷] د مینې ستا دی

ټوله ښکلا دي ستا له لاسه
ای د پاسوالو[۸] پاسه پاسه!

که لمر روښانه مخ یې سپین دی　　　بیا د سپوږمیه تندي ورین دی
که غر دی ښکلي پرتمین[۹] دی　　　لکه هنداره مخ د سین[۱۰] دی

ستا د ښکلا[۱۱] دا پلوشه ده
دا یې یو سپکه ننداره ده

---

۱. د پټې خزانې تعلیقات ص ۲۱۱.

دلته لوي غرونه زرغونيږي د ژوند ورږمې پکې چليږي
بوراوي شا و خوا کړيږي[1] سترګي ليدو ته يې هيښنيږي[2]

لويه خاونده! ټوله ته يې!
تل د نړۍ په ښکليده يې

خاونده! ښکلی ستا جمال دی ښکاره يې لور په لور کمال دی
که ورځ که شپه که پيړۍ، کال دی ستا د قدرت کمکي مثال دی

ستا د لورونو[3] يوه رڼا ده
دلته چې جوړه تماشا ده

زړه مې دا ستا د ميني کور دئ سوی د عشق په سوځند[4] اور دئ
رپ[5]يږي و تا ته ستا پر لور دئ بې له دې هيڅ دی ورک يې پلور[6] دئ

ستا جمال په ليدو ښاد دئ
که نه وي دغه نور برباد دئ

په غروکي ستا د عشق سپيلکي دي د دې نړۍ په عشق سمی[7] دي
که غټ، که وړه ، که پنډ نری دي ستا د جمال ځری[8] هر شي دي

چې پر دنيا مې سترګي پرې سوې
ستا د جمال په ننداري سوې

نه هسک[9] به مځکه وه تورتم و تياره خپره وه ټول عدم و
نه دا ابليس، نه يې ادم و ستا د جمال سوچه پرتم[10] و

چې سو ښکاره ښکلي دنيا سوه

د پنځ[1] پر لوري يې رڼا سوه

ز‌ه چې څرګند پر دې دنيا سوم | د ښکلي مخ په تماشا سوم
ستا پر جمال باندی شيدا سوم | له خپلي ستې[2] را جلا سوم

په ژړا ژاړم چې بيلتون دئ
يمه برديسي بل مي تون[3] دئ

وګړيو! ولي متي ژاړي | سورې[4] يې اورئ غاړي غاړي[5]
څه غواړي څه وايي څه باړي[6] | خپل تون او کور و کلي غواړي

چونې[7] چې بيل سي نيمه خوا سي
تل يې د بڼ په لور ژړا سي

د شيخ متي دا لوړ شعر په پښتو اشعارو کي خورا ډير اهميت لري او دا يوه داسي نمونه ده چې د عرفاني او تصوفي شعر په ديباچه او پيل کي دريږي.

د منځنۍ آسيا په پاړسي اشعارو کي عرفاني رنګ د غزنويانو له عصره ښکاري سنايي، شيخ فريد الدين عطار او مولانا بلخي (رومي) د دې ډلي مشران دي. د ٦٠٠هـ په حدودو کي پارسي شعر د تصوف يو غوره او غټه ذخيره لري.

داسي ښکاري چې شيخ متي د خپل عصر پر تصوف واقف سړی و او د ده دا شعر ثابتوي، چې ده په عرفان او تصوف کي پاخه افکار درلوده او د پښتو د متصوفو شاعرانو امام ګڼل کيږي، چې تر ده وروسته په دغه فکر او دغه ډول ډير اشعار د روښانيانو او عبدالقادر خان خټک او رحمان بابا اونورو له خوا ويلي شوي دي، مګر د شيخ متي اشعار په عرفاني دنيا کي يو مخصوص خوند، رنګ او قيمت لري، چې په نورو عرفاني او تصوفي اشعارو کي نشته؛ ځکه چې دی مخصوصاً په خپل شعر کي جمالی افکار او نظريات څرګندوي او دی کايناتو ته د ښکلا او جمال پلټلو په سترګه ګوري.

شيخ متي له هغو لومړيو خلکو څخه دی، چې پښتو شعر ته يې يو فلسفي ښکلی رنګ ورکړي او د جماليت ټکي يې ښه روڼ کړی دي؛ مګر د ده فکر تل له مادي خوا څخه معنوي او الهي افکارو ته ميل لري، له مادي اشعارو څخه تل

دې ښکلا انسان تر خپل اثر لاندې نیولی دی او د ده د فکر او عقلیت په سلسله کې د ښکلا خوښونې او جمالیت جذبه پیدا شوې ده، له هغه وخته چې فلسفي میلان او د شیانو په حقایقو کې فکر کول، په انسانانو کې ډېر شوي دي؛ نو له افلاطون او ارسطو څخه را نیولې، بیا تر کانټ او هوم متاخرو فیلسوفانو پورې ټولو د aesthetica پر جمالیاتو بحثونه کړي او مخصوصاً کانټ په علمي ډول دغه مباحث ترتیب کړه (۱۷۹۰ع) دی وایي: چې جمال یو مستقیم او بې غرضانه لذت او هسې یو خوند دی، چې د بل مقصد او غرض لپاره نه دی، بلکه پخپله دې مقصد دی او فنون هم د حسن او ښکلا د اظهار وسایل دي، مثلاً د خبرو فنون او د رقص او پیښنو فن او رسامي او نور هر یو ځانته د ښکلا او جمال ترجماني کوي.[1] د کانټ په علمي تعبیر، جمال یو بې غرضانه اوسیده سم خوند دی، چې انسان مستقیماً په فطري ډول رابطه ور سره لري؛ مگر هغه وخت چې نظر پوخ شي او د انسان کاته په غور او تدقیق وشي؛ نو د ښکلا او جمال څخه ښکلوهنکې ته میل کوي او په مادي ښکلا کې یو ابدي او جاویدان نور اوغیر فاني رڼا پلټي، د عرفان په دنیا کې د انسان دا لومړی قدم دی او هغه وخت چې له اثره او مؤثر او له موجوده موجد ته لار ومومي نو د الله نور السموات و الارض پر اساس د جمال په نندارو بوخت شي او د مینې په دریاب کې هسې لاهو شي چې بې له هغه نور بل څه نه ویني او وایي ''در هر چه بنگرم تو پدیدار بوده اي'' مولوي په دغه ډول دغه نور ته د انسان ور پاموي:

| | |
|---|---|
| اندرین گردون مکر رکن نظر | زانکه حق فرمود ''ثم ارجع البصر'' |
| یکنظر قانع مشو، زین سقف نور | بارها بنگر ببین ''هل من فتور'' |

د شیخ شعر هم اساساً پر دغو جمالي او عرفاني افکارو بنا شوی دی، دی وایي: که لمر او سپوږمۍ روښانه دي، که پر دښتونو باندې گلان خاندي، که په پسرلي د ځمکې مخ زرغونېږي، که په غرو کې د مینې شپیلۍ ږغیږي که بوراوي پر گلو کړېږي، دا ټول د یوه ابدي او غیر فاني جمال مظاهر دي او انسان تل د دغه جمال په مینه ژوندی پاتې او هر شي د جمال یو څرې دی. انسان پخپله هم د قدرت له فیاض او ښکلي منبعه را وتلی دی؛ نو په دې دنیا کې هم پر ښکلا مین دی او تل میل لري، چې بیرته خپل پرېښې وطن او ښکلي مرجع ته ولاړ شي؛ نو شیخ متي هم کټ مټ دغه فکر تصویر کوي او د مولانای روم په ډول خپلې روحاني مرجع ته میل کوي، مولانا وایي:

| | |
|---|---|
| بشنو از نی چون حکایت میکند | و ز جدایی ها شکایت میکند |
| کز نیستان تا مرا ببریده اند | از نفیرم مرد و زن نالیده اند |

ښکلا يعني موسيقيت هم پټ دی او د ده شعر اساساً د پښتنو د بدلو پر وزن په خواږه ږغ ويل کيږي؛ نو ده ګويا د ښکلا ډير فنون په دغه شعر کي سره يو ځاي کړي دي، اصل شعر پر جمالي فکر او نظرياتو باندي بنا دی، ژبه يې هم ښکلې او جميله ده او د شعر وينه او تغني هم په ږغيزه ښکلا او موسيقي پوري اړه لري.

## ۱۵. بابا هوتک

### ٦٦١-۷٤٠هـ

دا سړی هم د ترنک د وادي له مشهورو پښتنو څخه دی، چي هم د عرفان او هم د مشرتوب صفات لري او د دغو ښيګړو سره د پښتو ژبي يو ډير نامي شاعر هم دی د مؤرخانو په قول دی د بارو زوی او د تولر لمسی و او تولر هم د بابا غلجي له کورنۍ څخه دی، چي دا کورنۍ هم په پښتنو کي مشهوره ده او د بيټ نيکه له معروف خاندانه را وتلې ده، چي ډير ادباء او مشران پکي تير شوی دی او د ٦۰۰هـ په حدودو کي د ترنک د غاړو د پښتنو مشرتوب په دغي کورنۍ اړه درلوده.[1] بابا هوتک له دغي کورنۍ څخه يو نوميالی مشر و، چي په ٦٦١هـ په اتغر کي زيږيدلي دی او دا ځاي اوس هم په دغه نامه مشهور او د کلات جنوب شرقي خوا ته د هوتکو او توخو مسکن دی؛ ځکه چي د بيټ نيکه کورنۍ په صلاح او تقوا مشهوره وه؛ نو هوتک هم عمر په عبادت او صلاح تيراوه او په پښتنو کي د ده کرامات مشهور وه او د سردارۍ او بادارۍ مقام يې هم درلود. بابا هوتک د مغولو په دوره کي لومړی پښتون شاعر دی چي د خپل وطن دفاع يې کړې ده او د مغولو په جګړو کي يې لاس درلود، د ده د رشد او زلميتوب عصر د ۷۰۰هـ حدود دي چي دغه وختونه د مغولو د خپورتيا او د دوی د سلطنت د ارتقاء دوره ده، دا هغه وخت دی چي د غويانو عظمت کښته شوی او د فيروزکوه د لوړتيا زمانه تيره شوې ده، په هرات کي آل کرت او په سيستان او خراسان کي نور محلي امراء له مغولو سره اوبه غلبيلوي او شپه او ورځ ور سره تيروي، پښتانه چي اکثر د مغولو له تاړاکه غرو ته ختلي دي، يا د ارغنداو او ترنک په ورشوګانو کي ژوندي کوي، له دوی سره جنګونه کوي او خپله خپلواکي او آزادي ساتي، دا د آزادۍ جګړې د پټې خزانې مؤلف هسي بيانوي:

"نقل دی، چي: په هغه وخت کي به هر ځل مغولو د ارغنداو پر غاړو لوټ کاوه، اتغر او اولان او کلات به يې تالا کول. بابا هوتک خپل قومونه را ټول کړل او د سره غره[2] سره يې پر مغولو شخړه بوتله، په دې جګړه کي مغول تالا شول

هغو تږولو شاعرانو پیشوا ګڼل کیږي، چې په وروستیو دورو کې د مغولو مخې ته دریدلي او په قلم یا توره یې په وطني دفاع کې برخه اخیستې ده.

د بابا هوتک یو حماسي تود شعر چې په ملي وزن بږغول کیږي، د پټې خزانې مؤلف د خپل پلار له خولې په هسې ډول را نقلوي.

"د مغولو په یوه شخړه کې پښتانه لږ او بې قوته وه، چې د سرو مغولو پیښه راغله د بابا هوتک یو څو خپلوان ومړل، ده په لوړ بږغ دا حماسي سندره وهیله او خپل زلمي یې په جګړه کې تادوه کړل، څو دوی په دښمنانو باندي بری وموند، هغه سندره دا ده:"

پر سور غر بل راته نن اور دی
وګړیه جوړ راته پیغور دی
پر کلي کور باندي مغل راغي
هم په غزني هم په کابل راغي

غښتلیو ننګ کړئ دا مو وار دی
مغل راغي په تلوار دی
په پښتونخوا کي یې ناتار دی
پر کلي کور باندي مغل راغي

آ د مرغي غښتلیو راسئ
پر ننګ ولاړ د پښتونخوا سئ
توري تیرې غشي تر ملا سئ
پر کلي کور باندي مغلل راغي

زلمو په غشیو کړئ وارونه
د تیرو تور ګوزارونه
ور وړاندي کړئ خپل ټټرونه
پر کلي کور باندي مغل راغي

زما د زلمو ویني بهیږي
مځکه او غرونه په سره کیږي
میرڅي زغلي او ترهیږي
پر کلي کور باندي مغل راغي

## ۱٦. شیخ ملکیار هوتک

**د ۷٤۹هـ حدود**

شیخ ملکیار د بابا هوتک مشر زوی و او له خپله پلاره یې ادب، توره او مشرتوب په ارث وړی و، دی هم لکه خپل پلار د پښتو شاعر او هم د خپل قوم مشر و، چې د پلار تر مرگ وروسته یې د مشرتانه بگړۍ پر سر کړې وه.

د ده د تولد کال ۷۱۵هـ دی چې د پلار د وفات پر وخت د ۲۵ کالو زلمی و، دی جسماً هم قوي او غښتلي پهلوان و له لسو سړو سره به یې یوازي مقابله کوله او د بابا هوتک تر وفات وروسته د ملي دفاع وظیفه هم د ده پر غاړه لویدلې وه او د مغولو د یرغلگرو لښکرو په مقابل کي د پښتنو ملي مشر گڼل کیده.[1]

ملکیار د کلات د سیوري په لتو کي د خپل قوم سره اوسیده او هغه ځاي دی چې تر اوسه هم هوتک پکي اوسي. ده په سیوري کي خپل قوم زراعت او ودانۍ ته را وباله، کاریزونه یې وکښل؛ نو مغولو چې د دې ځاي زراعتي عمران ولید، پر سیوري یې هم یرغل وکړ او د پښتنو میني یې ور وراني کړې، دلته هوتک او د دوي مشر ملکیار مجبور شول چه مرغي او ږوب او وازي خوا یعني د سیوري شاو خوا ته سره متفرق شي، مگر ملکیار چه وطن خواه او توریالی او پوهاند مشر و، د مغولو مخي ته ودریده، او له دوي سره ئې د خپلواکۍ جهاد جاري ولاره ځو چه په پاي کي پر مغولو بریمن شو، او سیوری ئې بیرته ونیو، او دغه ځای یې بیا ودان کړ.[2] دا کورنۍ د ترنک په ورشوکانو کي تر اوسه لا هم شهرت لري، د ملکیار تره چې د بابا هوتک ورور و، توخي نومیږي، او د توخي زوی نور بابا هم د ملکیار معاصر او ملگری و. دوی لکه خپل پلرونه روحاني ژوند هم درلود او تل په پښتنو کي په صلاح او تقوي مشهور وه او په آخر کي تر ۱۰۰۰هـ وروسته د توخي له کورنۍ سلطان ملخي مشهور مشر راوهت، چه د اورنگزیب معاصر دي، مگر د بابا هوتک له پښته هغه مشهور ملي قاید او آزادیخواه پښتون پیدا شو، چې موږ ئې حاجي میر خان نیکه (میرویس خان) بولو، او ده د ۱۱۲۰هـ په حدودو کي د پارس د صفوي خاندان له اسارته خپل قوم وژغوره، او په قندهار کي د پښتنو استقلال بیرغ لوړ کړ، او وروسته د ده اولاد تر اصفحانه پاچهي وکره.

هسي نقل کا: چې یوه ورځ د مغولو تاړاک[۱] پر سیوري راغي او هغه وخت د ملکیار بابا په کلا کې څوک نه و، پرته له ښځمنیو[۲] نور باب چې خبر شو ژر ئې ځان هغه کوټ ته ورساوهٔ او په یو تن یې مغول وشړل، او ډېر یې مړه کړل، دا ټول د ملکیار بابا د دعا برکت ؤ...[۳]

له دې روایاتو څخه د پښتنو ذهنیت او فکر نسبت د دې کورنۍ او د ملکیار شخصیت ته ښکاري چې خلقو په څه احترام ورته کتل او د ده مقام ئې څونې لوړ ګاڼه.

**د ده اشعار**

داسې ښکاري، چه ملکیار د مینې ډک زړه درلود او د عشق او مینې پر لار ئې قدم واهه او کله کله به ئې عشقي سندري هم ویلې. پټه خزانه د ده یوه داسې عشقي سندره را نقلوي چې په پښتو اشعارو کې، د وزن او بحر او مضمون له پلوه ډېر قیمت لري، او خاص د یوه ساده او عشقي پښتني فکر نمایندګي کوي داسې سندري د پښتو په عامي شعر کې خورا ډېري دی، او په یوه خورا مست او طنان بږغ ویلي کیږي چه د پښتنو د مخصوصو الحانو او موسیقي یو خوږ ترنم او لحن دی.

ملکیار د طبیعت په سپیڅلي لمن کې دا عشقي سندره د رود پر غاړه د سپینې سپوږمۍ په ښکلې رڼا کې بږغولې ده د ده خطاب غورځند رود او ډک سین ته دی چې د ده او محبوبا تر منځ حایل شوی دی، د مینې اور ده ته قرار نه ورکوي او دی داسې تصور کوي چې دا اور څکه چې ډېر تیز دی؛ نو د سین څپې او طوفان او د سیل زیږې اوبه به وچې کړي.

د سین پر غاړه ناست دی، نه شي تیریدلای؛ نو د محبوبا کلي ته د سپوږمۍ په ذریعه خپل احترام نقدیم کوي او په پای کې دې خروشانه سیل ته د مینې په قوت خطاب کوي او تر اوړي.

د ملکیار دا د عشق شپه او د مینې ویناوي د پټې خزانې خاوند داسې نقل کوي:

هسي نقل کا، چې: په سنه ۷٤۹هـ کې په پسرلي ترنک ډېر ډک شو، په سختو نیزو[٤] او په یوه میاشت یې چړ[٥] نه وموند او خورا ډک غاړې غاړې بهیدي، ملکیار بابا چې د ترنک څنډونه ته راغي هسي سندري یې وهیلې:

| | | |
|---|---|---|
| ترنک بهیږې | ترنک بهیږې | غاړې تر غاړې |
| زما زړګي خو | خپل لالي غواړي | |

| | | |
|---|---|---|
| په وير ژړلی | په غم زبون دئ | |
| که اور دئ اور دئ | په زړه مي اور دئ | دا اور به وچ کا |
| د وير نيزونه | بل ډير په زور دئ | |
| نمنځه يوسه | سپيني سپوږميه | ورته وهايه |
| چي ترنک ټال کړم | ستا له خولگيه | |
| که خړو خړو | اوبو سوان[1] کړه | بيل ملکيار دئ |
| پاته له يار دئ | سوب[2] يې جانان دئ | |

## ۱۷. زمينداوری اکبر

### د ۷۸۰هـ حدود

د پښتنو له نوم ورکو شاعرانو څخه دی، چي د ده آثار هم ورک دي او فقط يو څو پاڼي په زمينداورکي ما ميندلي وې چي دا نوم ورکي شاعر د هغو پاڼو په مرسته وپيژاند شو.

لکه تاسي چي د دې کتاب په مختلفو برخو کي ولوستل، داور زموږ د وطن يو معروف ولايت او ډير عمر د اسلام له ابتداء څخه بيا د مغولو تر تاړاکه د مدنيت او ثقافت مرکز و مشهور ښارونه يې لرل او اکبر هم په دغه ځای کي پيدا شوي و.

دا شاعر هم د مغولو د دورې په ابتداء کي ژوندی و او د هغو شاعرانو له مخکښانو څخه دی چي دوی پخپلو اشعارو کي د مغولو له تاړاکه شکوې کړي دي، يا يې د هغو مظالم ليدلي دي، دی په دې بيت کي هسي وايي:

د مغولو لوتمر[3]هسي په اور وسوم     چي به هير په دې ماتم زمينداور کړم

له دې بيته ښکاري چي دی د گوډ تيمور معاصر دی؛ ځکه چي تمر د تيمور قديمه املا ده او دې پاچا له ۷۷۱-۸۰۷هـ پوري سلطنت کړي دی؛ نو د اکبر د ژوندانه عصر هم په دغو کلو کي د ۷۸۰هـ حدود ټاکلای شو؛ ځکه چي امير تيمور په ۸۰۰هـ د افغانستان نور ځايونه فتح کړل او له کابله يې د هند خوا ته حرکت وکړ.[4]

**مثنوي**

زه عاشق یم یار هم نیز
نور څه نه لرو تمیز!

یو پر بله عاشقان یو
پخپل عشق کي صادقان یو

یو په بل پسې رنځور یو
چه نزدې نه یو مهجور یو

عشق که ښه دئ که بلا دئ
پیدا کړی زموږ مولا دئ

که بړغ نکا عاشقان څوک
مړه سي دوی پر دا جهان څوک

خو به دواړه شهیدان وی
که رښتیني مسلمان وی

زه که مخ په اوښو سور کړم
زړه کباب صورت تنور کړم

لایق دا چي دا زه وکړم
څه تهمت به پر یار نه کړم

ولي هر ځاي زه بیلتون کړم
بیا د سرو اوښو، رڅون کړم

هم اشنا خوار کړم هم ځان
بیا تهمت کړم پر دوران

که نژدې که پر هیواد یم
زه د ده په خیال و یاد یم

چي غه[1] ښه دیدن یې یاد کړم
په تش خیال یې خاطر ښاد کړم

زه چي ژاړم مراد مي دا دئ
چي اشنا له ما جلا دئ

که موږ بیا سره خوشحال سو
چي محکوم زموږ وصال سو

زه د یار سم، یار مي خپل سی
زه بلبل سم، یار مي گل سی

په سپین مخ باندي تپیږم
چه دی خاندي ترې جاریږم

د لیدو شربت یې نوش کړم
غم د هجر فراموش کړم

سره کښېنو په خندا سو
په دا تیر احوال گویا سو

چي تیر سوي په هجران دی
خوشحال شوي غمازان دی

له غه پسه به صحبت کړو
زده زړونه به راحت کړو

په دې مثنوي کي اکبر د عشق او مینې هغه نازک او خوندور حالونه تصور کړي دي، چي عاشق او معشوق دواړه یو له بله سره غواړي، یوه د انجذاب او ائتلاف قوه په ټولو کایناتو کي ساري ده، چي هغه عرفاء عشق بولي او نور پوهان یې د جاذبې په نامه یادوي.

د کایناتو په اتومي ذراتو کي، چي دا عالم ځني جوړېږي، یوه قوه پرته ده چي تل دوی سره نښلوي، دغه قوه په انساني افرادو او بیا په اجتماعاتو کي هم تاثیر لري. عرفاء له دغه تجانس او مجاذبې څخه چي عشق یې بولي، دا نتیجه اخلي چي بدن او مواد خو په مادي دنیا کي یو له بله علاقه سره لري او یوه بله غواړي؛ مگر د انسان روح یوه بل تر مادي لوړ مرجع ته میل کوي، ولي چي د روح په ابتداء کي هم له هغې خوا راغلی دی.

مولانای بلخي څه ښه ویلي دي او کټ مټ دغه د اکبر د مثنوي موضوع ده، چي په دې بیتو کي راغلې ده؛ خو دوني شوی دی، چي اکبر په یوه مادي رنگ کي دغه معنوي کیف ښودلی دی.

هیچ عاشق خود نباشد وصل جو | که نه معشوقش بود جویای او
لیک عشق عاشقان تن زه کند | عشق معشوقان خوش و فربه کند
چون درین دل برق مهر دوست جست | اندران دل دوستی میدان که هست
هیچ بانگ کیف زدن آید بدر؟ | از یکی دست تو بی دست دیگر
تشنه می نالد که کو آب گوار | آن هم نالد که کو آن آب خوار
جذب آبست این عطش در جان ما | ما از آنِ او، و او هم ز آنِ ما
حکمت حق در قضا و در قدر | کرد مار را عاشقان همدگر
جمله اجزای جهان ز آن حکم پیش | جفت جفت و عاشقان جفت خویش
هست هر جزوی ز عالم جفت خواه | راست همچون کهربا و برگ کاه
آسمان گوید زمین را مرحبا | با تو ام چون آهن و آهن ربا
میل هر جزوی به جزوي مي نهد | ز اتحاد هر دو تولیدی جهد
هر یکی خواهان دگر را همچو خویش | از پی تکمیل فعل و کار خویش

کهربا عاشق بشکل بی نیاز | کاه میکوشد دران راه دراز[1]

اکبر پخپل مثنوي کي دا خبره چي عشق په حقیقت کي معاشقه او جذب یوه مجاذبه ده په ښه ډول ادا کړې ده او د مولانای روم سره همنوا شوی دی کوم ځای چي وایي:

زه چي ژاړم مراد مي دا دی | چي اشنا له ما جلا دی

ځکه چي مولانا هم هر ژړا او ناره په "از جادىی ها شکایت میکند" تعبیر کړې ده.

د اکبر له حیاته او احواله موږ نه یو خبر؛ خو فقط له یو څو اشعارو څخه د ده د فکر ډول معلومیږي او ښکاري چي د خپل عصر په ادب پوه سړی و او هغه ادبي تمایلات او اذواق چي د ده په عصر کي وه، ده ته ښکاره شوي وه او په عین دغو ادبي جریاناتو کي ده مخصوصاً د پښتنو شاعرانو روحي میلان او ذوق هم ساتلي و، چي د ده له دغه خورا مستي پښتو بدلي څخه ښکاري:

زه چي په مینه معشوقو د بنګړو شرنګ لره ځم | زه د هجران د بیلتانه د تورو جنګ لره ځم
زه اپوته[2] یم په هجران سره قرار نه لرم | هجر مي اوږد شو د وصال د امید کار نه لرم
بیلتون په خوله را کړي څاپیري زه لا عار نه لرم | وام د معشوق پر سینه پروت زه تور لونګ لره ځم

ځیني ئې ولي څوک عاشق څورنګ[3] په توري کاندي | پر خوار مین د شها هومره هوري ژوري[4] کاندي
بي نیازه نکا چي پلو له مخه لیري کاندي | چي را و پاځي په اخلاص چي خپل څورنګ لره ځم
اول خو ته نجلۍ په عشق باندي اقراره سولې | اور دې راپوري کئ نور کښېنستې قراره سولې
هیڅ ګفتګوي له عشقه نه کوې بیزاره سولې | یو وار خو، وهایه قرار چي د یار څنګ لره ځم

**د اکبر دوې غزلي**

د خپل ځان له حیرانۍ څه ویل کړم | د عشق ویر به تل پخپله پېټول کړم

| | |
|---|---|
| که په ما دی حکم وشي چي خادم شه | دغه ستا د نغری سور انګار پر سر وړم |
| چي جمال په مهر او مینه را ښکاره کي | شین توتي شم په هوا د میني پر وړم |
| چي ګفتار دی په ښه مینه راته وسی | نو بڼهای سم کوتي کوتي دُر ګوهر وړم |
| که مي وژنې که مي پیرې رضا ستا ده | ستا و عشي ته مدام موخه[1] ځیګر وړم |
| چي جمال دی په هجران کي را په یاد شي | هغه دم په تصور شمس و قمر وړم |
| ستا د تورو څڼو خیال هسي طویل دئ | تل په زړه کي دغه فکر زه اکبر وړم[2] |

## ۱۸. سلطان بهلول لودي

**جلوس ۸۵۵هـ ۸۹٤ هـ وفات**

د دې کتاب په یوه دمخه څپرکی کي تاسي د لودیانو کورنۍ احوال ولوست، چي دې کورنۍ تر غزنوي سلطنت دمخه په ملتان کي پښتو ژبه او پښتني ثقافت خپور کړي و، که څه هم هغه کورنۍ د سلطان محمود په لاس له منځه لاړه او د ۴۰۱هـ په شاوخوا کي یې کمبله ټوله شوه؛ مګر د لودي قوم بقایا په هند کي وه او له دوی څخه ډېر حربي مشاهیر را وهاته[3] او په ۸۵۵هـ کابل بیا له دې لودیانو پښتنو څخه ابو المظفر بهلول شاه د پښتنو د سلطنت اساس کښېښو او هغه رڼا یې بیا خپره کړه، چي څلور نیم قرنه دمخه د لودیانو په هبوط پټه شوې وه.

د هندوستان په پاچاهانو کي یو معروف سړی خضر خان د ملک الشرق ملک سلیمان زوی دی، چي په ۸۱۷هـ د دهلي پر پاچاهي کښېناست[4] او د ده له کورنۍ څخه څو تنو تر ۸٤۷هـ پوري پاچاهي وکړله، چي دوي خضر خانیه پاچاهان بولي، د خضر خان زوی معزالدین مبارکشاه په ۸۷٤هـ پر تخت کښېناست، ځکه چي دا کورنۍ د پښتنو پاچاهانو سره محشوره او هم د پښتونو د مځکي خلق وه؛ نو د دوی په سلطنت کي پښتنو او خاص بیا لودیانو ډېر اعتبار درلود او ملک سلطانشه لودي د مبارکشاه په زمانه کي د سر هند امیر و او د دغه پاچا له خوا په ۸۳۱هـ د اسلام خان په نامه هم مخاطب او سر لوړی شوی و او له مشهورو خلکو څخه ګڼل کیده.[5] د سلطان شاه (اسلام خان) ورور ملک کالا (کالو) نومیده، چي دی هم لکه خپل ورور د عصر له مشهورو سپه سالارانو څخه و او په مبارکشاهي عصر کي یې په اکثرو جګړو کي برخه لرله او یو مشهور سړی و.[6] د ده زوی ملک بهلول هم له خپله پلاره او اکا سره تربیه شو او ځکه چي

لومړی ده د پښتنو په ملګرۍ سر هند او ټول پنجاب ونیول، وروسته یې دهلي هم فتح کړ او د ۸۵۵هـ په ربیع الاول یا محرم کي د هند پر پاچاهۍ کښیناست او پښتانه سرداران لکه قطب خان لودي او دریا خان لودي او نور یې د ځان ملګری کړل او د هند هري خوا ته یې ښکاره فتوحات وکړه، دی د سلطنت په وخت کي ابو المظفر بهلول شاه بلل کیده، تر ۳۸ کالو سلطنت وروسته په دهلي کي قصبه جلالي ته نژدې په ۸۹٤هـ وفات شو او تر ده وروسته یې زوی سلطان سکندر پر ځای کښیناست او دې کورنۍ تر ۹۳۲هـ پوري په هند کي پاچاهي کوله.[1]

**د ده شعر:** سلطان بهلول لودي لکه د توري او تدبیر خاوند چي و، دغسي هم ده ادبي ذوق درلود او کله کله به یې شعر هم وایه او د ده په دربار کي به په پښتو خبري او معاشرې کیدې او دا لودي سلطان لکه خپل اسلاف د ملتان لودیان د پښتو ژبي شاعر هم و او د ده یو شعر د پټې خزانې مؤلف هسي ضبط کړی او د ده احوال یې هم داسي کښلي دي.

"په مخزن افغاني کي نعمت الله هسي کښلي دي چي ملک بهلول د ملک کالا زوي و، په هندوستان یې د سلطنت لو اهسکه کړه او دغه ملک له لودي طایفې څخه و له ډیري زمانې دې لودي ټبر سلطنت کا په هند کي، ملک بهلول په سرهند د اسلامخان تر وفات را هیسي استقلال وموند او تر جنګو په وروسته یې پر دهلي خطبه او سکه وهله، پاني پت، لاهور، هانسي او حصار او تاګور یې د ملتان تر څنډو پوري ونیول او د هندوانو د راجګانو سره یې سخت جنګونه وکړل او اته دیرش کاله یې پر هندوستان سلطنت وکا او ډیر عادل او عالم پادشاه و په ۸٦٤هـ کال وفات شو لکه چي وایي:

به هشت صد و نود چهار رفت از عالم　　　خدیو ملک ستان و جهانکشا بهلول

د سلطان بهلول علیه الرحمه وفات په تبه د جلالي په قصبه کي و..."[2]

تر دې وروسته د پټې خزانې مؤلف د محمد رسول کلاتوال د بیاض په حواله لیکي چي خلیل خان د سلطان بهلول د دربار شاعر یوه پښتو رباعي د سلطان په ستاینه کي ویلې وه، چي دغه رباعي به زه وروسته د خلیل خان په احوال کي راوړم. دی وایي چي سلطان هغه رباعي واروېدله، په جواب کي یې دا رباعي سم دستي وهیله:

ملک به زرغون کړم په ور کړه راسه　　　ګوره اویځي د داد له پاسه

خول مي د عدل په درو روڼ دئ　　　جهان به زیب مومي زما له لاسه[3]

## ۱۹. خلیل خان نیازی

**د ۸۹۰هـ حدود**

نیازي د پښتنو یوه قبیله ده چي د لودیانو یوه پښته شمیرله کیږي، دوی د لودیانو سره یو ځای په هند کي خپاره شوی دي، په افغانستان کي لږ دي، یو څو کوره یې په قندهار او غزني او شیوکي او لغمان کي شته. له دوي څخه هم په هند کي مشهور جنګیالي او مشران را وتلي دی، د لودیانو او سوریانو په دوره کي یې ډیر مشاهیر درلوده مثلاً هیبت خان نیازی د شیر شاه سوري په وخت کي د اعظم همایون په خطاب د لاهور حکمران و[1] او نیازیان د لودیانو او سوریانو غښتلي ملګري وه او تر اوسه یې هم بقایا په هند کي شته. له دې قبیلې څخه یو سړی، خلیل خان، دي چي دی د سلطان بهلول لودي د دربار معتمد او ادیب و او پټې خزانې د ده یوه مدحیه رباعي راوړې ده، په دې ډول:

"محمد رسول کلاتوال پخپل بیاض کي هسي کښلي دي، چي په هندوستان د برسات په موسم خلیل خان نیازي هسي رباعي انشا کړه او د سلطان بهلول پادشاه په مخه کي یې وهیله."

**رباعي**

خړي اوریځي ژاړي له پاسه — کویله[2] ږغ کا، بیلتون له لاسه

په هغه لوني[3] ګوهر په خول ستا — دا مرحبا که ستا، زموږ مواسه[4]

د خلیل خان د دې رباعي په ځواب کي پښتون شهنشاه هغه رباعي ویلې ده، چي دمخه د ده په احوال کي راغله. د خلیل خان نور آثار متأسفانه زموږ لاس ته نه دي راغلي او داسي ښکاري، چي د سلطان بهلول د دربار پښتون شاعر و.

په لوړه رباعي کي خلیل خان په ډیر ښه صورت د خپل ممدوح ستاینه د رجوع په صنعت کي کړې ده، لومړی د اوریځي ژړا او د کویلي د بیلتانه ږغ بیانوي، بیا په دوهم بیت کي رجوع کوي او د لومړي بیت مطالب نقض کوي، د ستاینې لپاره په بل رنګ هغه مقصد وایي.

کړي وې، زرغون خان په ۸۹۱هـ د هرات او خراسان او عراق (پارس) سفر وکړ او چي شيباني خان پر سيستان راغي، نو زرغون خان د خپل قومه سره له وطنه دفاع کوله او خپله آزادي يې ساتله.[۱]

داسي معلومېږي، چي زرغون خان يو ملي قايد او د وطن آزاديخواه مدافع او جنګيالی سړی و، علاوه پر دغه د قلم او علم خاوند هم و، لکه د آزادۍ د جګړو پر ډګر چي په مېړانه درېده، دغسي هم د علم او ادب په ميدان کي پوخ شهسوار و، لکه پټه خزانه چي د دوست محمد کاکړ له روايته ليکي: زرغون خان خورا ډېر عمر ژوندی و او د نهايت ضعيف او سپين ږيرتوب پر وخت په ۹۲۱هـ د قندهار په دهراوت کي وفات شوی دی.[۲]

**د زرغون خان ديوان او اشعار:**

زرغون خان د پښتو ژبي ښه شاعر او د ديوان خاوند دی، چي د ده ديوان په کجران[۳] کي په ۹۱۲هـ له ملا ايوب تيمني څخه و او په دغه کال چي دوست محمد کاکړ هرات ته تي، هلته يې دا ديوان کتلي و، چي ۳۰۰ پاڼي يې درلودې او دغه سړی پخپل کتاب غرغښت نامه کي له هغه ديوانه دوه بيته (مثنوي) نقل کړي دي چي د پټي خزانې مؤلف هم له هغه کتاب را اخيستي دي.[٤]




### ساقي نامه

ساقي پاڅه پياله راکړه — مرور يار مي پخلا کړه

اوبه تويي په لنبو کړه — اور مي مړ په دې اوبو کړه

پسرلی سو، غنچه ګل کا — زلفي تاوي د سنبل کا

بلبلان شور و فغان کا — کړيدن[٥] په ګلستان کا

زاهد وزي صومعې څخه — شراب پيوي[٦] ميخانې څخه

هر سړی په ميو مست دئ — دې بهار کي ګلپرست دئ

په راغو کي سرې لمبې دي — د غټولو[۷] ننداري دي

جهان ټول سور او زرغون سو — وچ راغه ښکلي ګلګون سو

سړي ټول شور و شغب کا — ياراني کاندي طلب کا

دنیا پاته موږ به ځونه — تورو خاورو کې به یونه

پیمانه ډکه له مې راکړه — بزم تود په پیاپې کړه

چې یو دم سمه آزاد — ناښاد زړه مې سینه[1] ښاد

ساقي پاڅه وقت د ګل دئ — په جوشش کې خم د مل دئ

وقت د میو د ویشو دئ — د پیالو د ډکیدو دئ

هغه څوک اوس د پیغور دئ — چې یې جام تش او نسکور دئ

مستان ګرځي په باغو کې — مستي کاندي په راغو کې

لاس په لاس دي یارانې کا — یو په بل ناز و نخرې کا

مجنون وصل له لیلا دئ — د جمال په تماشا دئ

نه غمجن سته، نه بیلتون سته — نه مهجور، نه ځیګر خون سته

تر تا وګرزمه[2] راسه — ساقي یو ګړی پخلا سه

ما ته جام د ربل و لور[3] را — چې یو تش سي ډک یې نور را

اور مي بل د زړه په کور کړه — له هر چا، هر څه یې تور کړه

چې بل څه نه وي الفت وي — ټوله مهر و محبت وي

ټول اخلاص وي او صفا وي — تیاره ورکه سي رڼا وي

له زړه کم غش او دغل سي — جهان ټوله ګل او مل شي

ساقي ستا مهر مطلوب دئ — نو بهار ځکه مرغوب دئ

که ستا لور پیروز نه وي — نو بهار به په څه ښه وي؟

خوند به نه کا رنګ د ګلو — بې مستیو، بې له ملو

لنه به بزم په شور تود سي — نه نغمې نه به سرود سي

جام به تش د آرزو سي — ورک به مهر او بیرزو سي

نو ساقي پاڅه بهار دی — بزم تاله امیدوار دی

د زرغون خان دغه د ساقي نامې مثنوي، د نهمي هجري پیړۍ له هغو آثارو څخه ده، چي په ښه ډول د پښتو ژبي اختلاط له پارسي سره ښکاره کوي. په دغه پیړۍ کي هغه پښتانه چي په سمو او ښارو کي ژوند کاوه، په پوره ډول د پارسي ادب تر اثر لاندي راغلي دي؛ لکه د دې مثنوي کلمات چي اکثر پارسي او عربي دي، دغسي هم تخلیل او د شاعر د اداء طرز او د کلام نوعیت هم پوره پارسي ته ورته دی او په دغو وختو کي چي کوم ادبي جریان په منځنۍ ایشیا او خراسان کي و، دا ساقي نامه یې ښه نمایندګي کولای شي، د پارسي ژبي په پخوانو شاعرانو کي مخصوصاً له غزنوي دورې څخه یعني د ٤٠٠هـ له حدودو، بزمي اشعار او خمریات ډیر شوي دي، اکثر شعراء لکه عنصري او منوچهري او عسجدي او نور د خپلو قصایدو تشبیب او نسیب په بزمي او خمري مضامینو سره کوي، وروسته سنایي او نور متصوف شعراء د عرفان په کټوریو کي د وحدت شراب څښي او دا نشه او کیف په عرفاني ډول پخپلو اشعارو کي نغاړي:

طلب اي عاشقان خوشرفتار — طرب اي نیکوان شیرین کار
تا کي از خانه، هین ره صحرا — تا کي از کعبه، هین در خمار
زین سپس دست ما و دامن دوست — بعد ازین گوش ما و حلقهٔ یار
در جهان شاهدی و ما فارغ؟ — در قدح جرعه ئی و ما هشیار؟

سنائي

دا عرفاني کیف په ډیرو بزمو کي، د میو او رنګینو جامونو په نشه هم اوړي، او دغسي خمري اشعار په مثنوي کي په ښه ډول ځای مومي، نظامي ګنجوي ډیري ساقي نامې لري، عمر خیام پخپلو رباعیاتو کي د خمري اشعارو یوه بهترینه نمونه دنیا ته پریښې دي او په پای کي ساقي نامه په سپک مثنوي کي ویل یو بیل فن ګرزي او په پارسي ادب کي یو مخصوص رنګ مومي او شعراء یې تقلید کوي.

عبدالنبي فخر الزماني چي د پارسي ژبي ساقي نامې سره یو ځای کړې دي (١٠٢٨هـ) یو غونډ کتاب یې د میخانې په نامه ځني ترتیب کړی دی او د نظامي، عراقي، خسرو او دهلوي، او خواجو او حافظ، او جامي او نورو پارسي شاعرانو ساقي نامې سره یو ځای کوي چي ځیني له دغو ساقي نامو بیل بیل کتابونه ګڼل کیږي او د ظهوري تهراني (متوني ١٠٢٥هـ) ساقي نامه تقریباً زر بیته ده.

په دغو ساقي نامو کي د شعراوه لار دا وه چي دوی به له ساقي څخه د سرو میو آرزو کوله، د ساقي او د جام او

بیا ساقي آن مي که حال آورد		کرامت فزاید کمال آورد

بیا ساقي آن کیمیای فتوح		که با گنج قارون دهد عمر نوح

شعراء د میو سره رقص او سرود وجد او پاکوبي، رندي او هوسناکي هم لازم گڼي او خواجه حافظ بزم ته هسي معني او رامشگر را غواړي او د دنیا بې ثباتي هم څرګندوي:

مغني بزن آن نوائین سرود		بگو با حریفان بآواز رود

مغني نواي طرب ساز کن		بقول و غزل قصه آغاز کن

درین خون فشان عرصۀ رستخیز		تو خون سراحي و ساغر بریز

بمستان نوید سرودی فرست		بیاران رفته درودی فرست

معنی دف و چنگ را ساز ده		بائین خوش نغمه آواز ده

فریب جهان قصۀ روشن است		ببین تا چه زاید شب آبستن است

لنډه یې دا چي د عربو د خمریه اشعارو تقلید د عجمو شعراوه وکړ او ورو ورو د ساقي نامې ویلو سبک په پارسي ادب کي پیدا شو، د نورو ایشیایي ژبو شاعرانو یې هم تعقیب وکړ، مگر په ساقي نامو کي د شاعر مهارت او استادي دا وه، چي د مستۍ احوال تصویر کړي او د مستانو په شان خبري وکړي، د استادانو ساقي نامې ټوله له مستۍ او وجد او ذوقه ډکي دي او هغه شعراء چي په ساقي نامه کي مستي نه کوي او عقلاوه په څیر ګډ وي، د دوي ساقي نامې د ادب له پلوه ښې نه ګڼلي کیږي.

په پارسي ساقي نامو کي که څه هم د ظهوري ساقي نامه خورا مفصله او هم خوږه ده او د مستۍ او میخورۍ مختلف مناظر ښیي؛ مگر کلام یې د مستانو په څیر نه دی او لکه ځیني اهل ذوق چي وایي، د ده دا اول بیت:

ثنا میکنم ایزد پاک را		ثریا ده طارم تاک را

د مستانو خبرو ته نه دی ورته او د یوه نارمل سړی وینا ده؛ نو ځکه د ده ساقي نامه هم عمومي مقبولیت نه لري او د ده زر بیته د خواجه حافظ تر ٦٠ بیتو نه درنیږي!

زرغون خان هم په دې پښتو ساقي نامه کي د استادانو پر لار تللي او مستانه وینا یې کړې ده د ده شعر روان او خبري یې هم د مستانو په څیر دي؛ ځکه نو ده ته یو کامیاب او پوخ ساقي نامه ویونکي وایو او دا ساقي نامه هم د پښتو

